


# کـابـل پـوهنتـون

## د ژبوو او ادبياتو پوهنځی

## پښتوڅانګه

د پوهاندۍ لپاره علمي اثر

# د پښتو ژبې د تدريس اصول

**ليکوال:**

پوهنوال محمد رفيق رفيق

**۱۳۹۴ ل کال**



# کتاب پېژندنه:


د کتاب نوم: د پښتو ژبې د تدریس اصول

لیکـــوال: پوهنوال محمد رفیق رفیق

خپروندی: د افغانستان ملي تحریك، فرهنګي څانګه

وېبپاڼه: www.melitahrik.com

ډیزاینګر: ضیاء ساپی

پښتۍ ډیزاین: فیاض حمید

چاپشمېر: ۱۰۰۰ ټوکه

چاپکال: ۱۳۹۴ ل کال/ ۲۰۱۵م

د تحریك د خپرونو لړ: (۸۴)

# د تحریك یادښت

د افغانستان ملي تحریك د (۱۳۹۳ ل) كال په پیل كې له خپلو ګرانو هېوادوالو سره ژمنه كړې وه چې د دې كال په بهیر كې به (شل عنوانونه) بېلا بېل دیني، علمي، ادبي او ټولنیز اثار خپلې ټولنې ته وړاندې كوي. ملي تحریك دا ژمنه د یاد كال د كب پر (۲۸)مه نېټه پوره او د یوې پرتمینې غونډې په ترڅ كې یې شل عنوانونه علمي اثار هېوادوالو ته وړاندې كړل. ملي تحریك په یاده غونډه كې ژمنه وكړه چې د (۱۳۹۴ ل) كال په بهیر كې به انشاء الله د خدای (ج) په نصرت ټول ټال سل (۱۰۰) عنوانه بېلابېل علمي اثار ټولنې ته وړاندې كوي. طبیعي خبره ده چې دا اسانه كار نه دی، ډېر زیات زیار او زحمت ته اړتیا لري، خو ملي تحریك ټینګ هوډ كړی چې خپله دا ژمنه به هم د تېرې ژمنې په څېر عملی كوي. دا اثر چې ستاسو په لاس كې دی د همدې (سل عنوانونو) ژمنه كړو اثارو له جملې څخه دی، چې د چاپ جامه اغوندي. ملي تحریك هیله لري چې له دې اثر څخه به زموږ هېوادوال په زړه پورې ګټه پورته كړي. ملي تحریك له ټولو هغو لیكوالو، ژباړونكو، سمونچارو، مالي او معنوي مرستندویانو او چاپ چارو څخه چې ددې اثارو د چاپ په دې ټول بهیر كې یې یو بل سره مرسته او ملګرتیا كړې او دا فرهنګي بهیر یې بریالی كړی، د زړه له كومې مننه كوي او كور ودانی ورته وایي.

د هېواد د فرهنګ د ښېرازۍ په هیله

د افغانستان ملي تحریك فرهنګي څانګه

# نيوليک

| سرليکونه | مخگڼه |
|---|---|


تقريظ................................................................................................الف

تقريظ................................................................................................ج

تقريظ................................................................................................د

مخکنۍ خبرې.......................................................................................ج

سريزه ..................................................................................................۱

لومړی څپرکی

د تدريس اصول او ميتود (The Teaching Method)

پيليزه(مدخل)...................................................................................... ۳

ميتودولوژي يا د تدريس پوهه ............................................................ ۸

ميتودونه او د هغو مختلف ډولونه.......................................................... ۱۰

۱- په ښوونکو باندې متمرکز يا .:............ (Teacher Centered Method)...۱۰

۲- په زده کوونکو باندې متمرکز (شاګرد محوري) يا نوی ميتود: ......۱۱

د وينا يا لکچر ميتود (Lecture method) .............................................. ۱۴

د سوال او ځواب ميتود (Question and Answer Method).......................۱۷

د مباحثې يا مناقشې ميتود (Discussion Method)............................... ۲۰

انکشافي ميتود (Discovery method)................................................ ۲۲

عملي يا نمايشي ميتود (Demonstration Method)................................ ۲۳

د تمرين او تکرار ميتود(Repeation and Practicing Method) ............... ۲۸

د لوست پلان ...................................................................................۳۱

په فعاله يا ښکارنده زده کړه کې ............................................................۳۳

۱- د زده کړې يا د يادولو تجربوته پراختيا ورکول:......................... ۳۵

۲- له ګډ څواک څخه ګټه اخيستنه:(Power of interaction) ........... ۳۵
۳- استدلال (Dialectic):........................................................ ۳۶
د شاګرد محورۍ د زده کړې ځانګړنې:.............................................. ۳۶
په شاګرد محورۍ سيستم کې د ښوونکي رول په ټولګي يا صنف کې:۳۷
ښکارنده (فعال) روش: (Active method) ........................................ ۳۷
د تدريس د روش ارزښت........................................................ ۴۱
د ژبې د تدريس د ځانګړي ميتود موخه........................................ ۴۳
په ښوونځيو کې د پښتو ژبې تدريس ........................................ ۴۴
د پښتو ژبې په تدريس کې موخې (هدفونه):.................................. ۴۷
د لو مړی څپرکی لنډيز ........................................................ 48
د لومړي څپرکي پوښتنې........................................ ۵۱

# دويم څپرکی

## د ژبې د زده کړې څلور مهارتونه

پيليزه(مدخل)........................................................ ۵۲
لومړی د اوريدلو مهارت: ........................................................ ۵۳
د يوه ښه اوريدونکي خواص:........................................................ ۵۴
د اوريدلو د مهارت دودې لپاره لاندې ټکي او فعاليتونه اړين دي:.... ۵۵
د غوږ د نه نيولو لاملونه (علتونه) ........................................ ۵۶
د ژبې دويم مهارت خبرې کول يا غږيدل........................................ ۵۸
د خبرو کولو د مهارت موخې (هدفونه): ........................................ ۵۹
د يو ښه ويونکي يا خبرې کوونکي صفتونه: ........................................ ۶۰
د خبرو کولو د مهارت دودې لپاره بايد لاندې فعاليتونه ترسره شي:۶۱
د خبروکولو لپاره څو لارې: ........................................................ ۶۲

د دویم څپرکی لنډیز ............................................................ ۶۹
د دویم څپرکي پوښتنې.......................................... .................... ۷۱

# دریم څپرکي

## دریم: د ژبې د لوستلو مهارت

پیلیزه ............................................................................ ۷۲
د لوستلو مهارت.................................................................... ۷۳
یو ښه لوستونکی کوم دی؟ ........................................................ ۷۴
په لومړنیو زده کړو کې د لوستلو پړاوونه:.......................................... ۷۵
لومړی: د پاملرنې (توجه) او ذوق را بلل:............................................. ۷۶
دویم: د پټې خولې لوستل:............................................................ ۷۶
دریم: په لوړ اواز لوستل:............................................................. ۷۷
د لوستلو دودې لپاره لاربښوونې، د لوستلو لپاره تیاری................................ ۷۹
د لوستلو لپاره څنګه پلان طرح شي ................................................۸۰
لومړنۍ مرحله یا طریقه:............................................................ ۸۳
دویمه مرحله:........................................................................ ۸۳
دریمه مرحله:........................................................................ ۸۴
څلورمه مرحله: ...................................................................... ۸۴
پنځمه مرحله:........................................................................ ۸۴
څنګه یو ښوونکی د زده کوونکو د لوستلو چټکتیا ته وده ورکولای شي؟. ۸۵
د دریم څپرکی لنډیز.................................................................. ۸۶
د دریم څپرکي پوښتنې. . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . ۸۸

# څلورم څپرکی

## د ژبې د زده کړې څلورم مهارت لیکل

پیلیزه ........................................................................ ۸۹
د لیکلو مهارت:........................................................................ ۹۱
د لیکلو لپاره ځنې مهارتونه:........................................................ ۹۵
د لیک او لیکدود د لیکلو په خاطر څو وړاندیزونه: ........................ ۹۷
د ژبې د زده کړې طریقې:.......................................................... ۹۸
ژبه د لاندې اصولو په پام کې نیولو سره ښه زده کیږي:.................. ۱۰۰
په ټولیزه توګه د لیکلو د مهارت لپاره لاندې فعالیتونه اړین دي:.... ۱۰۳
د املاء اصول او هدف یې ........................................................ ۱۰۵
د املاء د تدریس اصول ........................................................... ۱۰۷
د املاء د زده کړې د روش پړاوونه:.......................................... ۱۰۸
د کلمې جوړونې زده کړه:........................................................ ۱۱۱
د جملو جوړونې زده کړه:........................................................ ۱۱۲
د جملې جوړونې د تمرینونو ډولونه:.......................................... ۱۱۴
د لیک په زده کړه کې د املاء اهمیت........................................ ۱۲۰
لاندې کمزورتیاوې د املاء په لیکنه کې نیمګړتیاوې رامنځته کوي:۱۲۰
د انشاء او د هغې د زده کړې طریقې.......................................... ۱۲۶
د یو متن د لیکنې لپاره لازمې لارښوونې:.................................... ۱۲۷
د انشاء روشونه:...................................................................... ۱۲۸
د یوې انشاء لیکلو لپاره باید لاندې ټکي په پام کې ونیول شي:...... ۱۳۱
ښه انشاء:............................................................................. ۱۳۳
په انشاء کې له ګرامر څخه پیروي کول: ...................................... ۱۳۶
د انشاء نظم او اوډنه:.............................................................. ۱۴۰
په انشاء کې د لیکوال شخصیت:................................................ ۱۴۴
د انشاء لیکنې ستونزې:............................................................ ۱۴۵

د څلورم څپرکی لنډیز ............................................ ۱۴۷
د څلورم څپرکي پوښتنې . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . . ۱۴۹

# پنځم څپرکی

## په زده کړه کې د سمعي او بصري توکو اهمیت

پیلیزه ........................................................ ۱۵۱
په زده کړه کې د سمعي او بصری توکو اغیزې: ............ ۱۵۲
د سمعي او بصري وسیلو په واسطه زده کړه.................. ۱۵۵
په زده کړه کې د سمعي او بصري وسیلو مرستې..................۱۵۶
د حواسو رول په زده کړه او یادونه کې:.......................... ۱۵۷
د زده کړې د اغیزمنتیا له پلوه د درسي موادو او وسایلو ډلبندي: . ۱۵۸
د یو ادبي اثر د تدریس په اړوند د پام وړ ټکي ................. ۱۶۰
د ادبیاتو منځپانګه (ماهیت)، ډولونه او د هغو تدریس .................. ۱۶۰
د ادبیاتو ډولونه:.................................................. ۱۶۳
د نثر د تدریس په برخه کې یوه کوچنی بیلګه:.............. ۱۷۱
د ښوونکي درسي پلانونه............................................ ۱۷۴
درسي پلان:........................................................ ۱۷۴
ورځنی درسي پلان .................................................. ۱۷۸
د ورځني درس د برابرولو پړاوونه: ............................. ۱۷۹
د مهال له مخې درسي پلانونه:................................... ۱۸۵
درسي فعالیتونه:.................................................... ۱۸۷
درسي توکي (مواد) وسایل او لوازم: ............................ ۱۸۸
د ارزیابي کولو لارې چارې: ...................................... ۱۸۹
د موخو (هدفونو) ټاکل:........................................... ۱۸۹

**په ټولګي کې د فعالیتونو د اجراء کولو اساسي لارې:........................۱۹۱**
**د ارزیابي کولو لارې چارې: ..........................................................۱۹۲**
**د منځنۍ مودې د درسي پلان بېلګه: ..................................................۱۹۴**
**هدفونه:............................................................................................۱۹۵**
**درسي فعالیتونه:................................................................................۱۹۶**
**درسي توکي (مواد): .........................................................................۱۹۷**
**ارزیابي: ..........................................................................................۱۹۸**
**د کلني درس طرح.............................................................................۱۹۹**
**د لنډې مودې د درسي پلان بېلګه د جدول په بڼه: ..........................۲۰۰**
**د پنځم څپرکی لنډیز .........................................................................۲۰۳**
**د پنځم څپرکي پوښتنې........................................................** ۲۰۵
**اخځلیکونه ..........................................................................................۲۰۷**

# تقریظ

کتاب (( د پښتو د تدریس اصول)) عنوان اثری است کـه محتـرم پوهنـوال محمد رفیق «رفیق» جهت ترفیع به رتبه علمی پوهاند تألیف کرده است، ایـن اثر که حدود (۱۷۵) صفحه را احتوا نموده و دارای پنج فصل میباشد مطابق به پلان درسی مضمون ( اصول تدریس زبان پشتو) دیپارتمت که تـدریس آن در یک سمستر یک کریدت صورت میگیرد تهیه و تدوین شده است. از آنجـایی که موجودیت کتاب درسی از مبرم ترین مواد تحصیلی بوده و از جملـه مـواد درسی در اولویت قرار دارد، کار تحقیق و تألیف کتاب در زمینه همچو این اثـر خیلی ها شایسته و ارزشمند است. محترم پوهانوال رفیق که در تطابق با پلان درسی، کتاب «اصول تدریس زبان پښتو» را تألیف کرده است طـوری کـه ملاحظه میشود در تألیف کتاب همه موازین و معیـار هـای کتـاب نویسـی را رعایت کرده، اثر تألیفی موصوف، حاوی مواصفات ذیل است:

۱- کتاب از آنکه برای یک سمستر و یـک کریـدت میباشـد دارای حجـم و محتوای مناسب است.

۲- در تهیه مواد آن از منابع و مآخذ معتبر استفاده شده است.

۳- موضوعات کتاب در همه قسمتها با در نظر گیری یک تسلسـل منطقـی ارایه شده است.

۴- در هر فصل کتاب مهارتهای اموختن زبان از جمله چهار مهارت (اوریدل، غږیدل ، لیکل، لوستل) با در نظر داشت جزئیات دیگـری بـه انشـأ خـوب تشریح شده است.

۵- کتاب در اخر هر فصل برای درک کامل مطالب، تلخیص و نتیجهٔ فصل را دارا است.



**۶- همه بخشهای کتاب برای فهم بهتر موضوعات، حاوی سوالنامه ها، پــلان های درسی روزانه، هفته وار، ماهانه، سالانه، طویل مدت و کوتاه مدت است؛ که این خود از مواصفات یک کتاب درسی میباشد.**

**از اینکه محترم پوهنوال رفیق کتاب را با همه مزایایی که به آن اشاره شده بــا شیؤ بیان رسا و انشای خوب تهیه و تألیف کرده، و از اینکه این کار علمــی اش بخشی از ضرورت دیپارتمنت را برآورده ساخته است، موصوف سزاوار ترفیــع به رتبه علمی پوهاند میباشد.**

**و همچنان قابل ذکر است، که این کتاب درسی از نگاه شکل و محتوا به معیــار های تألیفی و نورم اکادمیک تهیه و تحریر شده است بناً چاپ و نشــر آن لازم پنداشته شده، امید است پوهنتون کابل با چاپ این اثر مفیــد اســتفاده آن را عام سازد.**

**به امید موفقیتهای بیشتر شان**

**پوهاند دکتور محمد حسین "یمین"**

# تقریظ

**محترم پوهنوال محمد رفیق «رفیق» برای ترفیع علمی به رتبه پوهاند کتـاب درسی «د پښتو ژبې د تدریس اصول» تألیف نموده است. این کتـاب در پـنج فصل مطالب متنوع را تشریح و توضیح نموده است، در ضـمن فصـول اسـتاد رفیق در رابطه به چگونه گی اصول تـدریس چهـار مهـارت تـدریس زبـان، (اوریدل، غږیدل، لوستل، لیکل) به جزئیات آنها توضیحات دقیق داده اسـت. موصوف کوشیده تا زمینهء فراگیری سیستماتیک را بر مبنای تحلیل و توضیح موضوعات با هم مرتبط ، محقق سازد. در پهلوی چنین مسـایل، کتـاب دارای تمرین ها، خلاصه های مباحث و سایر مواصفات مـی باشـد، و ماهیـت کتـاب درسی را تکمیل نموده است، نثر کتاب روان و به آسانی قابل فهم میباشد.**

**استاد رفیق کوشیده است همه مطالب را به طرز منظم ترتیب و تألیف نمایـد، یقین است که این کتاب دارای مزایای در خور تحسین می باشد، بدین سـبب اثر مذکور برای ترفیع علمی به رتبه پوهاند کاملاً مناسب می دانـم. کتـاب "د پښتو ژبی د تدریس اصول" تألیفی است مطابق پلان درسی مضمون که از نگاه شکلیات مکمل و محتوا آن برای یک کریدت کافی است.**

**ازین رو بنده تاکید و سفارش نشر آنرا می نمایم، اگـر کتـاب بـه زیـور چـاپ آراسته شود، سومندی آن بیشتر می شود. و از آن استفادهء بهتر صورت مـی گیرد.**

**با احترام**

**پوهاند دکتور عبدالقیوم "قیوم"**

# تقریظ

د درسي کتابونو لیکل د پښتو څانګې د ستونزو د حل لپاره یو اړین کار دی، له نیکه مرغه زموږ درنو استادانو د دغې تشې د له منځه وړلـو پـه خـاطر ګټـور ګامونه اخیستي دي. دا دی په دې لړ کې ښـاغلی پوهنـوال محمـد رفیـق د څانګې یو تکړه او با تجربه پخواني استاد هم د یوه اړین درسي کتاب په لیکلو او تالیف لاس بری شوی، نوموړي (د پښتو ژبې تدریس اصـول) تـر سـرلیک لاندې کتاب بشپړ کړی دی.

د کلونو راهیسې دا مضمون په بریالیتوب سره تدریس کړی هم دی. دا ویـلای شم چې دا کتاب د څو کلونو د تدریس په رڼا کې لیکل شوی دی چې د پښـتو څانګې د درسي مفرداتو سره سم غني منځپانګـه لـري. د درســي کتـابونو د اصولو له مخې لیکل شوی چې مخکنۍ خبرې یوه جامع سریزه، پنځه څپرکي، د هر څپرکي پیلیزه، د څپرکي لنډیز او پوښتنې لري.

همدا ډول د معتبرو اخځونو لست هم په پای کې راوړل شوی دی. ټول کتاب د (۲۳۵) مخونو په شاوخوا کې پای ته رسېدلی. ښاغلی محمد رفیـق پـه کتـاب کـې سرلیکونه او راغلي مطالب په خپل خپل ځای کې د اړتیا په اندازه پـه مناسـب ډول تشریح او توضیح کړي دي. د شاګردانو لپاره په زړه پورې ګټور مواد لري. د یوه ښـه تالیفي کتاب ټول معیارونه یې پوره کړي دي. د شاګردانو د سویې سره سـم یـې پـه ساده انشا لیکلی دی. په دې کتاب سره به زموږ د اړوند مضمون د تـدریس سـتونزه حل شي.

زه د نوموړي دغه زیار او پرځای هڅې ستایم. زما له نظره دغه اثـر چـې د پوهانـدۍ علمي رتبې لپاره کاندید دی، مثبت ارزوم. هیله لرم چې ددغه کتاب چاپي بڼه ژر تر ژره د علاقمندانو تر لاسونو ور ورسېږي. لیکوال ته یې نورې بریاوې هم غواړم او ددې علمي اثر مبارکي ورته وایم.

په درنښت

پوهاند محمد صابر خویشکی

د پښتو څانګې استاد

# مخکنۍ خبرې

هر علم او پوه ځانته د تدریس کولو لارې چارې لري. پر ته له ښوونې او لارښود
څخه د هر مضمون د تریس کولو چارې تل ستونز منې وي. په تیر کلونو کــې د
ادبیانو او بشري علمومو پوهنځې کې دغــه مضــمون پــه ټولــو ځــانګو کــې د
(تدریس اموزي) تر سرلیک لاندې په عملی توګه ټاکلي استات په لارښونه په
حضوري توګه د مشخص دندې په ورکړې سره تدیس کیده هد محصل مکلــف
و چې د مضمون د نوعیت له مخې پــه عملــی او نظــري درســونوکې ازموینــه
ترسره کړي. مانا دا چې نمونوي درس به یې په یوټولګي کې د موظف ښوونکې
تر نظر لاندې وړاندې کاوه، دغه درس بیا د استاد له خوا د نمرو په ورکړی سره
ارزیابي کیده. خو متاسفانه چې اوس په ژبوو کې هغه عملی پروسه په مکتبونو
او لیسو کې له پامه غورځول شوی ده. یوازې د یو کریدت تریس په عملی کولو
سره بسنه کیږي. زما له نظره دغه تیوریکي برخه په عملی تدریس کــې ډېــره
اغیزمنه نه شي کیدلای. د تدریس کولو یا د تدریس میتود لپاره د کریدتونو یا
د درسي ساعتونو شمیراو مهال ډیر کم په پام کې نیول شوی دئ.

له پخوا څخه د پښتو ژلې د تدریس میتود د یو مسلکي او ځانګړی مضمون په
توګه، د استادانو له خوا په شخصي او خپل ذوقي ځانګړو میتودونو او تجربو له
مخې تدریس کیده، د یو واحد نصاب اومفرداتو شتون نــه برســترګو کیــده. د

همدې اړتيا له مخې پښتو څانګې پريکړه وکړه چــې د دي مضــمون (د پښــتو ژبې تدريس ميتود) تر سرليک لاندي زه د خپلو څو کلونو تجربو په رڼا کې يــو نسبتاً منظم درسي کتاب چې د پښتو څانګې له خوا يې مفردات منل شــوي او بيا د پوهنځي د شورا له غور څخه وروسته تاءيد کــړي او همــدا ډول د لــوړو تحصيلاتو د وزارت د اکاډميکو چارو د انسجام رياست له خوا تائيد او د ليکلــو يا تاليف اجازه زاکړه شوه، چې دادي بينده د خپل وس په کچه ستاسې مخ به پروت دسي کتاب تاليف کړ. هيله لرم چې ګران لوســتونکي او اســتادان د دې کتاب څخه ګټه واخلي، او په راتلونکی کې ددې کتاب نيمګړتياوې په ګوتــه او سره بشپړې کړي.

په درنښت

پوهنوال محمد رفيق "رفيق"

# ســــریزه

په لرغوني افغانستان کې هم د زده کړې لړۍ (سلسله) له ديني او مذهبي علومو را پيل شوې، زړه برخه يې لرغونې (ويدي) سرودونه دي چې د لرغونې عقيدې، د طبعيت رازونه راسپړي. پندونه او لارښوونې لري او خلک پوهې او زده کړې ته را بولي. ۱۱: ۱۹۷-۱۹۸

دغه ويدي سرودونه له نن څخه څلور زره کاله وړاندې د هندوکش په شمال د بلخ په تاريخي سيمه کې پيل شوي چې له هغه وخته را په دې خوا د تعليم او تربيې لړۍ را پيل شوې ده.

وروسته د بلخ په تايخي سيمه کې درېنيم رزه کاله وړاندې د ( اوستايې) مدنيت بنسټ کيښودل شوی چې مشر يې زردشت وه.

په اويستا پسې بيا د بودايي دين دوره راځي چې تر ميلاد شپږ پيړۍ وړاندې يې په هند کې رواج موندلی وو چې لرغونې اريانا په سيمه کې د اشوکا پاچا په واسطه دلته د درېمې پيړۍ (ق م) کې دغه دين خپور شوی و چې د بلخ د نوبهار معبد يې ستر تاريخي شهرت لري. ۳: ۵۰

له دې څخه بيا وروسته په جزيره العرب کې د حضرت محمد (ص) په زيږېدنه او د اسلام د سپيڅلي دين په راتللو سره نړۍ روښانه او يو نوی انساني تمدن پيل شوی چې په چټکۍ سره يې خپلې د حق نوراني پلوشې وغوړولې.

د نړۍ د هيوادونو په لړ کې ګران هيواد افغانستان هم له دې انوارو څخه فيض وموند. په لنډه توګه ويلی شو چې د زده کړو اساسي بنسټ له همدې ځايه څخه را پيل شوی دی.

د پورتنيو زده کړو او تعليمونو اساسي وسيله ژبه ګڼل شوې. د بشري ټولنو تجربې د همدې وسيلې په واسطه انتقال مومي د فکري او ذهني ودې لامل همدا ژبه ګڼل کيږي.

لکه څنګه چې په هر تعليمي او تربيتي پروګرام کې موضوع ، موخه ،پيام، کرکترونه، د موضوع پرمختيا، سناپسس (لنډيز) طرحه ، ښودنه (تمثيل) او خپربدنه سره لازمي او اړين توکي دي. همدا ډول د ژبې تدريس لپاره هم له مختلفو ميتودونو ، روشونو او طرزونو څخه کار اخيستل کيږي.
ژبه د تيرو تمدونونو د انتقال او سپړنی يوازنۍ وسيله ده . د همدې وسيلې له برکته انساني ټولنې خپلې تجربې سره تبادله کوي او له يوې ورځې نه بلې ته انساني ټولنې خپلې ستونزې له منځه وړي او د برياوو په لور ګامونه اوچتوي.
په همدې بنسټ د پښتو ژبې د زده کړې او تدريس لپاره هم د يو منظم فهرست له مخې د تدريس په اوصولو او ميتودونو بحث شوی ، او په پنځه فصلونو کې د لنډيز او پښتنو په راوړلو سره ستاسې ګرانو شاګردانو او مينه والو حضور ته وړاندې کيږي.

# لومړی څپرکی

## د تدریس اصول او میتود(The Teaching Method)

پیـــلیـــزه:

- په دې څپرکي کې د میتود ځینې ډولونه تشریح کیږي.

په میتودولوژي باندې یو څه بحث ترسره شوی دی، چې د تدریس لارې چارې ښیې.

د هر درسي میتود په اړه د اړتیا سره سم معلومات وړاندې شوي دي.

ددې میتودونو پر بنسټ یو ښوونکی کولای شي خپل تدریس اغیزمن او چمتو کړي.

د دې اصولو په اجراء کولو سره ښوونکي ښه تدریس کولای شي او زده کوونکي به ترې ښه استفاده وکړای شي. میتود ښوونکي خپلو اهدافو ته ژر رسوي.

- د پوښتنو یا سوال ځواب کولو طریقې لارې چارې او اصول په روښانه توګه ښودل شوي دي.
- د مباحثې او مناقشې د میتود ځانګړنې، او ګټې په روښانه توګه تشریح شوي دي، په دی میتود کې د نظریاتو تبادله ډیره ترسره کیږي. ټول ګډونوال پکې فعال وي. پوهه پکې ښه ارزول کیدای شي.
- د انکشافي میتود په اړه لازم معلومات او څرګندونې شوي دي، چې لار موندنې کشفولو، خپلې پوهې ته د پراختیا ورکولو مسایل رانغاړي. د واقعیتونو درک کول او ښه نتیجه اخیستل له درس څخه د

همدې میتود په لړ کې کیدای شي. په دی میتود سره د مسئلو د حل لارې هم موندل کیږي.

- د نمایشي میتود پړاوونه توضیح شوي دي، چې ښوونکی پرې درس په اغیزمنه توګه تدریس کولای شي. وروستی میتود بیا د تمرین تشریح ده چې ښوونکي به ترې بشپړه ګټه ترلاسه کړي.
- په فعاله زده کړه کې به د ښوونکي او زده کوونکي ونډه وپیژندل شي. همدارنګه د تدریس د روش ارزښت هم بیانیږي.
- هر مضمون د ټاکلو میتودونو په مرسته تدریس کیږي او ځانګړو موخو ته پرې زده کوونکي لاره مومي او زده کړه ترسره کیدای شي.
- د پښتو ژبې د تدریس موخې په شپږو مهمو جملو کې خلاصه شوي دي.

میتود څه شي ته وایي؟

میتود یوه یوناني ګړنه (اصطلاح) ده، چې له دوو کلمو میتا (Meta)، هودوس (Hodes) څخه یې جوړښت رامنځ ته شوی دی.

میتا (Meta) په لغت کې (دننه، منځ کې، وسط) او (Hodes) د (لارې، روش، طریقې) ماناوې ښندي. په دودیزه (عنعنوي) توګه دغه اصطلاح داسې پیژنو:

میتود یعني د مفکورو او الواکونو تنظیم او ترتیبول. میتود د یوې لارې، روش په واسطه د یو کار، ترسره کول او له هغې طریقې څخه پیروي کولو ته وایي:

کله چې د تدریس میتود وایو، هماغه ټاکلې لاره چاره ده، چې د هغې پواسطه د تدریس چار (عملیه) په منظم ډول ترسره کیدای شي. یا د کار کولو منظمه عملیه چې د نظر او عمل یووالی او ترتیب پرې ترسره کیږي د تدریس میتود بلل شوی دی.

**دې لارو چارو، ښوونو، فعالیتونو ته چې ښوونکي او زده کوونکي یې کاروي او په لږ وخت کې خپل ټاکلی هدف ته پرې ورسیږي د (تدریس اصول) هم وایي. همدا ډول میتودولوژي د (میتود پوهې) ته وایي، چې د ښوونې، روزنې علم او پوهي د لیږد چار له ښوونکي څخه زده کوونکو ته لیږدوي.**

**نو په روښانه توګه ویلی شو، چې علم، پوهه او معلومات په مختلفو ډولونو، میتودونو، او لارو چارو سره انتقال موندلی شي، چې ورته میتودونه یا د تدریس اصول وایي. هر څوک د یو ټاکلی هدف او کار د ترسره کولو لپاره، اغیزمنې، آسانه ګټوري لارې چارې غوره کوي. د ښه ترسره کولو په خاطر یې هغو لارو چارو او میتود ته اړتیاوي چې پایلې یې تر نورو ګټورې، اسانه، ارزانه او لږ مهال ونیسي.**

**په زده کړه کې هغه میتودونه وکاروي، هغه درسي اغیزمن فعالیتونه په درسي بهیر کې ترسره کړي چې زده کوونکي په خاصه توګه او ښوونکي د ورځني ژوند په بېلابېلو اړخونو کې ترې سالمه ګټه واخلي.**



**په لنډه توګه میتود داسې تعریف شوی دی:**

میتود اصلاً یوه یونانی کلمه ده (Methods) چې مانا یې د یوی لارې، طریقې او روش په وسیله موخې (هدف) ته رسیدل، یا دیوې مسئلې د حل لارې، ته میتود وایي.

یو وتلی چکوسلواکیایي پوه (کومنسکي) په (۱۵۹۲م) کال د میتود بنسټ په جدی ډول په ښوونه او روزنه کې رامنځته کړ. هغه میتود په لاندې ډول تعریف کړ:

میتود د شاګرد او ښوونکي هغو تنظیم شوو فعالیتونو او لارې ته چې هغوی یو ټاکلي هدف ته رسوي، روزنیز (تربیتی)، زده کړیز (آموزشي) بهیر ته وده او پراختیا ورکوي، میتود بولي.

میتودونه د زده کړو او روزنیزو موخو له بنسټیزو توکو څخه ګڼل کیږي، پرته له میتود او لارو چارو څخه موږ نه شو کولاي چې خپلو دندو او زده کړو ته په ښه توګه دوام ورکړو، د ژوند په ټولو برخو کې میتود ته اړتیا وي. مګر په تدریس کې چې یوه فوق العاده منظمه انساني هڅه او فعالیت دئ، دغه میتودونه په جدی ډول د تطبیق او پاملرنی وړ دي، چې د ښوونکي او زده کوونکي لپاره تدریس او فعالیتونه د همدې (میتود) له مخې پلان او ځانګړي کیږي. هر څومره، چې د یو فعالیت او کار لپاره میتودونه د اړتیا، شرایطو سره سم د یو ښوونکي سره په متنوع ډول شتون ولري او پر ځای له هغه څخه کار واخلی په هماغه اندازه کامیاب او بریالی ښوونکي کیدای شي. یو میتودیست او مسلکي ښوونکی کولای شي، چې په ټولګی کې د هر یو زده کوونکي درسي زده کړیز فعالیتونه په سمه توګه طرح او وټاکي او همدا ډول کولای شي هر تن وځاري او زده کوونکي په خپل فعالیت کې یو نوښت ته وهڅوي. د میتود له مخې ښوونکي هر اړخیزه څارنه ترسره کړي. خپل درسي فعالیت داسې سره

تنظیم کړي، چې د شاګرد جسمي او رواني حالت له پامه ونه غورځول شي. د میتود تر څنګ د طرز کلمه هم کارول کیږي. ۲۸: ۴

طرز: د یوه میتود تطبیق لپاره له مختلفو ساده روشونو او لارو څخه ګټه اخیستنې ته طرز ویلی شو. د طرز ګړنه له میتود څخه محدوده وي. د یوه میتود عمده اجزاوي جوړوي.

په یوه میتود کې کیدای شي مختلف طرزونه شتون ولري. د ساري په توګه: په یوه لکچر کې واړه طرزونه د موضوع د په زړه پورې والي په خاطر کارول لکه:

په څرګندونوکې؛ پوښتنې، ځوابونه، د عکس، چارت، فلش کارت، د کیسې ویل، مثالونه وړاندې کول، هڅونکي سوالونه، خبرې کول او د هغو د ویلو طرز حرکات، نغوتې (اشارات) ټوکې، متلونه ویل، خاطرې او داسې نور، ورته فعالیتونه چې د وخت د غوښتنو او حالاتو سره سم د تدریس په بهیر کې ښوونکي ترسره کوي ورته طرز ویلی شو.

طرز د تدریس په لړکې ضمني فعالیتونه وي. که چېرې زیات وخت هر طرز ونیسي، کیدای شي د میتود په توګه وکارول شي. طرز د تدریس په وخت کې دستړیا او یا هم د زده کړې د اغیزمنتیا لپاره کارول کیږي. طرزونه د زده کړې بهیر دلچسپ او ګړندی کوي.

کامیاب ښوونکي کولای شي له شرایطو سره سم خپل میتودونه او د تدریس لارې سمبال کړي. ۱۲: ۲۰

د چاپیریال د حالاتو او د وخت له غوښتنو سره سم خپل تدریس په زړه پورې کوي.

# میتودولوژي یا د تدریس پوهه

د ښوونې او روزنې ماهرین میتود د ښوونکي لپاره د هغې ډیوې یا چراغ سره پرتله کوي، چې د هغې په واسطه ښوونکي، روزونکي خپله لاره مومي. له تیارو او نامعلومو موخو څخه یې ژغوري. که چیرې د ښوونکي سره دغه میتودولوژي نه وي، نو هغه، مسافر ته به ورته وي چې د شپې په تیاره کې سفرکوي. میتودولوژي د پیداګوژي د علم یوه مهمه برخه جوړوي. د زده کوونکو د هڅولو او ښکارنده ساتلو په برخه کې بنسټیز رول لري.

څرنګه چې په تدریس کې د پوهې د لیږدولو مسآله وي، نو باید ښوونکي دا پیدا کړي چې څه ډول هغو ته ښه زده کړه او پوهه ورولیږدوي.

ښوونکي دنده لري، چې کوم ډول میتود د ټاکلې موضوع لپاره وکاروي، چې په حقیقت کې دغه کار د ښوونکي په وړتیا او مهارت پورې اړه لري. د میتودونو په کارونې کې یو ښوونکی باید د خپلو وړتیاوو (قابلیتونو) په ټاکنو کې لاندې ټکو ته پاملرنه وکړي.

- ښوونکی باید په ټولګي کې د شاګرد محوري او د فعال تدریس کولو ځواکمني ولري.
- ښوونکی باید د موضوع ښوونیزې او روزنیزې موخې په خپل درسي پلان کې ځای کړي.
- ښوونکي د خپل درس لپاره یوه مناسبه منځپانګه د تعلیمي نصاب سره سمه برابره وي.
- ښوونکي به د زده کولو لپاره د یو هڅوونکي او تشویق کوونکي ذهنیت د رامنځته کولو ځواک ولري، چې د هغوی مینه او علاقه مندي ټاکلي لور ته ورجذب کړي.

- **يو ښوونکی خپله ارزونه په پرله پسې ډول په مختلفو طریقو سره ترسره کوي.**
- **ښوونکي له نورو څخه په درسي برخه کې مرسته غواړي. خپله د نورو لپاره د ښو اخلاقو نمونه وي، همدا ډول باید د متقابلو تجربو تعادل ولري.**
- **ښوونکي باید د شاگردانو دفردي اختلافاتو پیژندنه او دهغوی درک په پام کې ولري.**
- **ښوونکي باید د مضمون د نوعیت د درک ځواکمني ولري. د ساري په توگه: د ریاضی، ساینس، ژبو او ادبیاتو او نورو لپاره لابراتوار ولري. یا د غوره کړ شوی مضمون وړتیا او ځواک ولري.**
- **ښوونکي باید د سمعي او بصري وسایلو د کارونې او پوهیدنې ځواک ولري.**
- **د ټولنې د اړوند فرهنگ او ثقافت په پام کې نیولو سره د درسي موضوعاتو منطقي لړۍ او همدارنگه د موضوع منطقي تسلسل ښوونکي باید په پام کې ولري.**
- **په ټولگي کې د منظم درسي پلان درلودل چې په هغه کې میتودونه پلی شي، نه یوازې د هغو ترتیب او چمتو کول بلکې داسې برابر شي چې بدلیدونکي او انعطاف منونکي وي، چې په ټولگی (صنف) کې د تطبیق وړ وي.**

# میتودونه او د هغو مختلف ډولونه

میتودونه په عمومي ډول په دوو برخو ویشل کیږي:

**۱. په ښوونکو باندې متمرکز یا عنعنوي میتود: (Teacher Centered Method)**

په ټولګي کې په دودیزه توګه د ښوونکي لکچر ورکول، درسي کتاب له مخې نه لوستل قرائت کول، میخانیکي حفظ کول، د موضوعاتو تکرارول او ځینې نور فعالیتونه په ټولګی کې د ښوونکي له خوا ترسره کول، چې یوازې په هغه پورې اړه ولري، د معلم محوری میتود په نامه سره یادیږي. ښوونکي هدایت ورکوونکي، د پوهې لیږدونکي او عمل کوونکي وي، د تدریس په بهیر کې زده کوونکي یوازې د پوهي اخیستونکي او غوږ نیونکي وي او بس.

په دې ډول میتودکې ټولې خبرې یوازې په ښوونکي پورې اړوندې راڅرخیږي. په ډیرو هېوادونوکې اوس دغه میتود له پامه غورځیدلی، ددې پرځای اوس د شاګرد محوری میتود تبلیغ کیږي او پام ور اړول شوی دی، چې پرمختیایې هم کړې ده.

دغه میتود له ډیرو تخنیکونو څخه برخمن دئ، چې په دې کې د شاګردانو د تجربو، یادونو او د اهدافو د فعالیتونو څخه کار اخیستل کیږي. په ټولګي کې یوازې ښوونکي د ټولو عاجلو ستونزو او مشکلاتو حل کوونکي نه ګڼل کیږي. شاګردان په خپله د درس په بهیرکې فعال نه وي، له کنجاوي، پلټنې څخه کار نه اخلي، کوچني دوه نفري یا ډیر نفري ګروپونه، ډلې نه جوړوي.

له تمثیل، رول پلی (Rule play)، خبرې اترې، نورې زده کړیزي لوبې یا انفرادي هڅونې نه ترسره کوي. درس د شاګرد په وسیله هم ټولګیوالو ته نه وړاندې کیږي.

په معلم محوری کې یوازې لاندې ټکې په پام کې نیول شوی وي:

میخانیکی یادونه (حفظ)- تکرار او تمرین- لکچر- لوستل (قرائت)- د ښوونکي له خوا پوښتنې- څرګندونې او شرحې- د ښوونکي له خوا شننه (تحلیل او تجزیه).

**د پورته ټکو په یادولو سره چې د ښوونکي له خوا اجراً کیږي د تدریس کولو عنعنوي یا دودیزه میتود ګڼل کیږي، چې په اوسنی مهال کې اغیزمن میتود نه بلل کیږي.**

**شاګرد ته د فعالیت چانس نه ورکول کیږي، چپه خوله د ټولګی په کونج کې ناست وي. د هغه د استعداد روزنه او غوښتنې له پامه لویږي. یوازې لیدونکي، اوریدونکي پاتې کیږي. له ډیرو مسایلو څخه چې د تدریس په بهیر کې شاګرد باید پرې وپوهیږي خالي ذهنه او بې تفاوته پاتې کیږي. زده کړه په بشپړه توګه نه ترسره کیږي، یو اړخیزه بڼه خپلوي، یوازې ذهین او لایق زده کوونکي یو څه حافظې ته د عادت له مخې سپاري. د ښوونکي څخه لږ شاګردان زده کړه کولای شي.**

**۲. په زده کوونکو باندې متمرکز (شاګرد محوري) یا نوی میتود:**

**په ښوونه او روزنه کې د نویو څیړنو له مخې نوي میتودونه او اصول کارول کیږي، چې په دې میتودونو کې د نویو نظریو له مخې د تدریس په بهیر کې د ډیرو درسي فعالیتونو اصلی محور شاګرد ګڼل کیږي. زده کوونکي له ښوونکو سره په اړیکه کې د ښوونکي له خوا جوړ شوی درسي پلان په منظمه توګه پلی کوي، ښوونکی یوازې د اړتیا په وخت کې د هغو لارښوونه کوي. د ښوونکي پر ځای شاګردان درسي چارې پر مخ بیایي او په ټولګی کې ټول زده کوونکي فعال د ښوونکي تر څارنې لاندې په درس کې ونډه اخلي.**

**په شاګرد محوری کې په عمده توګه دغه لاندې ټکي په پام کې نیول کیږي:**

**ډله ایزه یا ګروپي زده کړه- یو له بل سره خبرې اترې کول- زده کړیزې لوبې- د ښوونکي پرځای فعالیت (رول پلې) یا د ښوونکي پیښې- د افکارو تکاثر- انفرادیت- سلا مشوره- عملي هڅې... او داسې نور فعالیتونه، چی د درس په بهیر کې رامنځته کیږي او د تدریس په اغیزمنتیا کې ونډه لرلی شي، د ښوونکي په لارښوونه ترسره کیږي.**

**همدا راز ددې میتودونو په کارولو سره زده کوونکو ته د ګډې زده کړې- (Participatory learning) شرایط برابریږي، چې زده کوونکي ځاني زده کړو ته چمتو او هڅول کیږي. په زده کوونکو باندې راڅرخیدونکی میتودونه د ابتدایي یا**

**لومړنيو زده کړو د درسي ټولګيو په ماشومانو کې ډېر اغيزمن وي، ښوونکي بايد د همدې ميتودونو په کارولو سره شاګردان ګډې (اشتراکي) زده کړې ته وهڅوي.**

**هغوی ته د هدفمندې زده کړې ښه شرايط برابر کړي، چې شاګردان وکولای شي ژر وپوهيږي او ژر فکر وکړي، اخيستل شوې پوهې او تجربې يو له بل سره شريکې کړي، چې له ټاکلي درس څخه ښې ګټورې پايلې ترلاسه کړي.**

**په ګډه زده کړه کې د ټولګي ټولو شاګردانو ته په يوه موضوع يا مطلب باندې د قضاوت کولو، فکر کولو او نورو ګډو فعاليتونو زمينه برابريږي، دوی کولای شي چې نه يوازې خپلې پوهې او تجربې نورو ته وليږدوي، بلکې د نورو د پوهی او تجربو څخه هم ګټه اخلي.**

**ګډه يا اشتراکي زده کړه د کوچنيو ماشومانو لپاره ګټوره او اړينه وي. د لوبو او نورو درسي فعاليتونو له مخې زده کړه ډيره اسانه کيږي، په ګروپي زده کړه کې ماشومان د روزنيزو ډله ايزو لوبو او درسي فعاليتونو په لړ کې نوروته ځان وريپيژني، د خبرو کولو، دليل ويلو او قضاوت کولو ځواک يي پياوړی کيږي. دغه ډول فعاليتونه شاګرد ته ډيره ګټه رسوي.**

**لنډه دا چې په زده کوونکو باندي متمرکز يا نوي درسي ميتودونه لاندي ښيګڼې او ځانګړتياوي لري:**

**۱. د دې ميتودونو د کارولو په لړ کې ښوونکی (معلم) د لارښود دنده پر غاړه لري. زده کوونکي د درس په بهير کې معلومات ليږدوي، خپل نظر يې او فکرونه څرګندوي.**

**۲. د تدريس بهير ځانګړې عملي بڼه خپلوي، د زده کوونکو په پوهاوي او د موضوع په درک کولو ټينګار کيږي، د درسي موضوعاتو په يوازې حفظ کولو زورنه اچول کيږي، حفظ کول دويم پړاو ته پريښودل کيږي.**

**۳. ټول زده کوونکي د درس په پروسه کې ونډه اخلي، درسي عملي فعاليتونه ترسره کوي، انځورونه او نور ډله ايز او انفرادي هڅی او فعاليتونه شاګردان فعاله ساتي.**

۴. ښوونکي له پلان سره سم خپل درس تنظيموي، له ډول ډول هغو موادو څخه د تدريس په بهير کې کار اخلي چې درسي بهير اسانه او په زړه پورې کوي.
۵. د دوی تر منځ د تدريس په بهير کې د موضوعاتو په اړه يو او بل ته د تجربو د ليږد په زړه پورې معلومات او چاپيريال رامنځته کيدای شي.
۶. زده کړه مانا داره، موخه لرونکې، ګډه يا اشتراکي ګرځي.
۷. ټولو زده کوونکو ته د تدريس په بهير کې د نظريو، وړانديزونو او د خبرو د کولو ونډه ورکول کيږي. کمزوره او ګوښه ګيرو شاګردانو ته هم په خپله ډله کې د نظر د بيان او ځان پيژندنې شرايط برابريږي.
۸. زده کوونکي په تدريس کې فعال او په مينې سره په درسي بهير کې ګډون کوي او په خپله خوښه فعاليت کې برخه اخلي.
د تدريس ميتودونه خورا زيات ډولونه لري. هغه ميتودونه چې ښوونکي د تدريس په جلا جلا پړاوونو کې د ښې، اغيزمنې او هدفمندې زده کړې کې ترې کار اخلي، په لاندې ډول پيژنو:
۱. د وينا يا لکچر ميتود (Lecture Method)
۲. د سوال او ځواب ميتود: (Question and Answer Method)
۳. د مباحثې يا مناقشې ميتود (Discussion Method)
۴. انکشافي ميتود (Discovery method)
۵. عملي يا د ننداري (نمايشي) ميتود (Demonstration Method)
۶. د تکرار او تمرين ميتود (Repetition and Producing Method)

## د وینا یا لکچر میتود: (Lecture Method)

دا میتود په لوړو زده کړو کې اغیزمن وي، وخت پکې ډېر سپما کیږي. په دی میتود سره په شفاهي توګه زده کړه انتقال مومي.

هر ښوونکی چې یو مضمون یا موضوع د خپل مسلک سره سم تشریح کوي، حتماً به په هغه مضمون یا موضوع کې بشپړ معلومات لري.کله چې یوه موضوع په لنډه توګه زده کوونکو ته تشریح کوي او په موضوع باندې له هغو سره بحث کوي، د ښوونکي یو له مهمو مهارتونو او پوهې څخه ګڼل کیږي. کله چې ښوونکی پرته له کوم یاداشت څخه په یوې ټاکلې موضوع باندې رڼا اچوي او شاګردان غوږ نیسي او یا په ګډه له زده کوونکو سره بحث کوي. د پوهې دې ډول لیږدولو ته د لکچر میتود وايي.

ښوونکي د شاګردانو په وړانـدې د موضـوع بنسـټیزې مسـئلي څرګنـدې او بیانوي.

دا میتود هغه وخت اغیزمن کیدای شي، چې زده کوونکو ته پکې فعاله ونډه ورکړل شي.

ځینې درسي فعالیتونه هغو ته پریږدي، چې د هغوی فکري وده او د هغو د یو او بل پوهه سره یوبل ته ولیږدول شي. په دې درسي میتود یا درسي بهیر کې د هر درس لپاره درې پړاونه په پام کې نیول کیږي:

*لومړی :* د درس لپاره د تیاري یا چمتوالي پړاو (مرحله).

*دویم:* په اصلي درسي موضوع باندې خبرې او درسي فعالیت ترسره کولو پړاو.

*دریم:* د درس لنډیز، پایله او د ارزونې پړاو.

یو ښوونکی په دې میتود (لکچر) کې لاندې ټکو ته جدي پاملرنه کوي:

- د لکچر په میتود کې ښوونکي باید وخت په پام کې ونیسي، په هغه څه تمرکز وکړي چې د بحث موضوع وي، حاشیه روي او له موضوع څخه لیریوالی د درسي موضوع ماهیت ته زیان رسوي، باید ښوونکي ورڅخه ډډه وکړي. د زده کوونکو توجه اصلي درسي موخې ته راوګرځول شي نه نورو څیرمه مسائلو ته!
- ښوونکي خپلې درسي بنسټیزې دندې وپیژني اوټاکلې موخې له پامه ونه غورځوي.
- د درس په موضوع باندې ترهغه زیات وپوهیږي چې په درسي متن کې راغلي وي.
- د لکچر پر مهال زده کوونکو ته هم د خبرو کولو برخه او د هغو د نظریاتو خیال وساتل شي.
- ځینی فعالیتونه دې زده کوونکو ته پریښودل شي او هم دې د هغوی نظریات او فعالیتونه په خپل لکچر کې له پامه ونه غورځوي.
- د درس هغه برخه چې ډیر ارزښت لري او موخې پکې نغښتي وي په هماغه برخه دې ډیري خبرې او تشریحات ورکړل شي.
- زده کوونکو ته دې ډیرې خبرې پریښودل شي، چې د ټولو نظریات څرګند او یو د بل له پوهې څخه برخمن شي، ښوونکي په لنډو خبرو کې خپل درس تشریح کوي، نور شاګردان هڅوي چې د موضوع سره تر پایه ملګري او فعال ګډون کوونکي واوسي.
- ښوونکي باید متحرک وي یعنې په ټولګي کې پر یوه ځای ولاړ پاتې نه شي.

خپل حرکات دې له وینا سره سم داسې تنظیم کړي چې د ټولو شاګردانو سره دې خپلې اړیکی د سترګو او حرکتونو پواسطه یو ډول وساتي. خپل توان او غږ

دې په داسې ډول، نرم، جګ او کښته کړي چې د ټول صنف لپاره يو ډول په زړه پورې واوريدل شي او اغيزمن وي.

- زده کوونکو ته دې د بحث مناقشې، فکر کولو او نورو درسي هڅو چاپيريال په وار وار سره برابر شي.
- په دی میتود کې د شاګرد لپاره وخت کم وي.
- په لکچر کې بايد د موضوع اساسي ټکي څرګند کړل شي.
- زده کوونکي د حقايقو په کشفولو کې فعال نه وي.
- زده کوونکو ته کورنۍ دنده (شفاهی، تحریری)ورکړشي، زده کوونکي د نمرو په ورکړې سره تشويق او وارزول شي.

# د سوال او ځواب میتود

(Question and Answer Method)

سوال او ځواب د ښوونکي لپاره په تدريس کې يو ښه ميتود ګڼل شوی دی.
ددې میتود په کارولو سره زده کوونکي هڅول کيږي، ښوونکي د ټولو درسي پړاونو په ترسره کولو کې تريې ګټه اخيستلای شي. خپل شاګردان ارزيابې کولاي شي او هم یې د پوهې کچه په موضوعاتو کې ورته معلوميږي، چې څومره يو له بله سره توپير لري.
په دې ميتود کې بايد ښوونکي سوالونه او ځوابونه په ساده کلماتو او الفاظو داسې مطرح کړي، چې زده کوونکي ژر پرې وپوهيږي او ځوابونه يې هم لنډ او مختصر وي. د سوال او ځواب پر مهال بايد درسي ټاکلی وخت په پام کې ونيول شي، نه داسې چې په محدودو پوښتنو او ځوابونو ټاکلی وخت تير او تمام شي، چې ګنو زده کوونکو ته د سوال ځواب هيڅ وخت پاتې نه شي.
په دې طريقې سره ښوونکی خپل درس په زړه پورې او د لچسپ کوي. د شاګرد درک او فهم پياوړی کوي. يوناني وتلی عالم (سقراط) زده کوونکو ته د تفکر يوازينۍ لاره په سوال او ځواب کې وينې. دغه ميتود د شاګرد په درک، تفکر او ارزيابۍ کې مهم رول لوبوي. سوال او ځواب په تدريس کې يوه پياوړې وسيله پيژندل شوې ده. ښوونکي بايد د مختلفو سوالونو خزانه وي.

د دې ميتود ښيګڼې:

*لومړی:* زده کوونکي ته د سوال او ځواب د ورکولو لارې چارې او د سوالونو د ذکر کولو وخت او زمان ښيي.

*دويم:* زده کوونکي ته جرّت ورکــوي او هم يې د افــادې د ځواک پياوړتيا رامنځته کوي.

**_دريم:_ ښوونکي خپل درس اسانه کوي، کمزورو او ضعيفو شاګردانو ته پاملرنه کوي، د هغوی ستونزې ښوونکی درک کوي او د هغو لپاره د حل لارې لټوي.**

**_څلورم:_ د پوښتنو په لړ کې ښوونکي د خپل درسي فعاليت اغيزمنتيا له يوې ورځې څخه بلې ورځې ته ارزولی شي.**

**_پنځم:_ هر زده کوونکي ته له توپير څخه پرته په سوال او ځواب کې ونډه ورکول کيږي، زده کوونکي له بې تفاوتۍ، بې پروايي او بې علاقګۍ څخه ژغورل کېږي.**

**_شپږم:_ د هر زده کوونکی او ښوونکي د سوال او ځواب ورکولو په لړ کې شاګردان نوي معلومات ترلاسه کوي او د خپلې پوهې کچه لوړوي.**

**_اووم:_ نيمګړي معلومات بشپړيږي، اصلی موخې په سمه توګه پرته له شک څخه پيژندل کيږي.**

**_اتم:_ کومې ګرنې او مفاهيم چې زده کوونکو ته په سمه توګه مفهوم شوي نه وي، د ګډو نظرياتو او ځوابونو په لړ کې د هغو اصلی ماناوو او موخوته زده کوونکي رسيږي.**

**_نهم:_ د دې ميتود په کارولو سره ښوونکي او زده کوونکي ته دوه اړخيزه معلومات او ډاډمنتيا حاصليږي.**

**د پوښتنو کولو لارې او طريقې:**

**د سوال کولو يا د سوالونو د جوړولو ډولونه د تعليم او تربيې ماهرينو په مختلفو ډولونو او لارو چارو سره په ګوته کړي دي. دلته په هغو ډولونو باندې بحث نه کوو، فقط په ټوليزه توګه د پوښتنو يا سوال کولو په مهال کې بايد لاندې ټکي په پام کې ونيول شي:**

- **د زده کوونکو څخه بايد سوال داسې مطرح شي، چې هغه فکر کولو ته وهڅوي، نه داسې چې د (هو) يا (نه) په ويلو سره هغه ځواب ونيسي.**

- په سوال کې باید یو ټاکلې موخه نغښتې وي یعنی هدفمند سوال وي.
- سوالونه باید د زده کوونکو له سویې او عمر سره سمون ولري.
- سوال باید میخانیکي یا حفظي بڼه تر ډېره خپله نه کړي.
- سوال باید یوه پوښتنه ولري، نه داسې، چې د یو سوال په دننه کې نورې اړوندې پوښتنې مطرح شي.
- ښوونکي د زده کوونکو پوښتنو او ځوابونو ته ارزښت ورکړي او د هغوی پوښتنې پرځای وبولي.
- ښوونکي د شاګردانو د ډیرو سوالو نو په کولو سره له زغم څخه کار واخلي، او ستړي نه شي. هغه زده کوونکي چې ډیرې پوښتنې کوي لا زیات وهڅول شي.
- د شاګردانو د ځوابو په وړاندې ښوونکي باید بې تفاوته پاتې نه شي، د سم او نا سم ځواب په برخه کې باید خپله رایه څرګنده کړي.
- که چیرې سوالونه پیچلی مطرح شي، باید د مثالونو په ورکولو سره هغه ساده کړای شي. که سوالونه ډیر جامع او هر اړخیز ځوابونه غواړی، نو په جزونو او برخو دې ورته وویشل شي، چې د زده کوونکو لپاره پوښتنې په اسانه توګه مفهوم او درک کړل شي.
- زده کوونکو ته د ځواب ویلو یا پیدا کولو په خاطر د وخت او مهال ورکول لازمي خبره ده، چې په اړوند ځواب ورکولو فکر وکړي.
- په سوال کې باید ځواب نغښتی نه وي او یا په خپله پوښتنه د سوال ځواب نه وي.

## د مباحثې يا مناقشې ميتود: (Discussion Method)

دا ميتود نسبت د سوال او ځواب ميتود ته يو څه پراخ او ازاد بحث وي.

د نظرياتو د تبادلې امکان پکې زيات وي، مگر د سوال او ځواب ميتود ته ډير ورته او نژدې ميتود پيژندل شوی دئ. په دی ميتود کې ټولو زده کوونکو ته د نظر د څرگندولو او خپلو دلايلو د ويلو چانس زيات وي. په داسې بهير کې ټول زده کوونکي د خبرو کولو حق مومي، د موضوع په اړه فکر کوي او فعال وي.

د موضوع په اړه غني معلومات ترلاسه کيږي. يو د بل له پوهې او تجربې او تفکر څخه اغيزمن او وړ معلومات هر يو خپلولي شي.

په دې ميتود کې بايد ښوونکي شاگردان داسې وڅاري او لارښوونه يې وکړي، چې له موضوع څخه ونه وځي، هسې په نورو تشو خبرو وخت ضايع نه شي. په مناقشه کې خبرې اترې له يوه سوال يا پوښتنې څخه راپيليږي، ځواب مومي او يوې پايلې ته رسيږي. کله بيا بحث له موضوع څخه بل لورته ځي. ښوونکي بايد کوښښ وکړي چې مناقشه خپل اصلي لورته بيرته راوگرځوي، چې له اصلي موخې څخه لرې نه شي. دا ميتود تل ډير وخت ته اړتيا لري، ښوونکي بايد په درسي پلان کې پيدا کيدونکو ستونزو او خنډونو ته له مخکې نه پاملرنه کړي وي.

ددې ميتود په کارولو سره چې يو پياوړی ميتود پيژندل شوی دئ لاندې گټې لري:

*لومړی:* په ټولگي کې د گڼو شاگردانو او ښوونکي تجربې او افکار درس غني کوي.

*دويم:* ټولو زده کوونکو ته د گډې زده کړې او هڅونې چاپيريال رامنځته کيږي.

*دريم:* د ښوونکو او زده کوونکو دوه اړخيزه پوهه او معلومات زياتيږي.

*څلورم:* د زده کوونکو پوهه او زده کړه په ښه توگه ارزول کيدای شي.

*پنځم:* د مباحثې په لړ کې د درس د ټاکلې موضوع څخه نور اضافي معلومات زياتيږي، تجربی او نظريي سره څرګنديږي.

*شپږم:* د زده کوونکو تر منځ د علمي بحثونو تجربې، اړيکي او پيژند ګلوي لا بشپړيږي.

*اووم:* هغه زده کوونکي چې په درس کې ګډون نه کوي يا فعاله برخه نه اخلي، هغو ته د خبرو او معلوماتو د وړاندې کولو زمينه او شرايط برابريږي.

*اتم:* يو بل سره يې مينه او پيژندنه، د خبرو او خطابې فن او جرأت لا پياوړی کيږي او هم يې په ځان او نورو د باور حس رامنځته کيږي. په رواني لحاظ ډاډمنتيا ترلاسه کوي.

په لنډه توګه ويلي شو، چې په دې ميتود سره ډله ايز بحثونه، ګروپي مناقشې په مختلفو طرزونو سره ترسره کيږي. ددې ميتود ګټې او اغيزې د ټولو شاګردانو په فعال ګډون سره د ښوونکي په ښې لارښونې، څارنې او ارزيابی پورې اړه مومي، چې د ټول ټولګي لپاره يو ډول د زده کړې شرايط او چاپيريال چمتو کړای شي.

## انکشافي میتود: (Discovery method)

دا میتود (د پیدا کولو، کشفولو او لار موندلو) ماناوې ښندي. ددې په مرسته ښوونکي کولای شي، چې زده کوونکو ته هغه لارې په ګوته کړي چې شاګردان خپلې پوهې ته پراختیا ورکړي، واقعیتونه درک کړای شي، پخپله د درس او موضوع څخه نتیجه اخیستنه هم وکړي. زده کوونکي فعال وي، فکر کولو ته هڅول کیږي، درسي پرابلمونه پخپله حل کوي.
د ښوونکي پرځای خپله شاګردان په درسي بهیر کې ښکارنده ونډه لري.
ښوونکي لارښونه کوي. زده کوونکو ته ددې میتود په کارولو سره د فکر کولو او نظریو د څرګندولو شرایط برابر وي. ددې میتود په کارولو سره ښوونکي داسې درسي چاپیریال رامنځته کوي، چې زده کوونکي لومړی د یوې پوښتنې یا پرابلم سره مخامخ کوي، چې بیا د هغې په ځواب موندلو سره زده کوونکي ژور فکر کولو او د موضوع د ژور درک او لاپوهیدو په موخه په پر له پسې توګه نویو هڅو او نظریو څرګندولو ته مخه کوي او معلومات یو په بل پسې زیاتیږي، تر هغه پورې درسي موضوع انکشاف او پراختیا مومي چې اصلي موخه او پریکړه د اړوند درس ترلاسه شي. په دې میتود کې باید پوښتنې یا سوال داسې مطرح شي، چې د زده کوونکو له سویې سره سمون ولري. په داسې بهیر کې د اکثریت لپاره د پوهې د پراختیا وړ شرایط او زده کړه رامنځته کړای شي، ښوونکي ددې میتود په کارولو سره د لارښود او ښه مشاور یا سلاکار په توګه مرسته کوي. هغه لارې چارې پوښتې او وړاندیزونه ورته، ترسره کوي، چې د هغوی د ذهن او پوهې د پراختیا او پیاوړتیا سره مرسته وکولای شي. شاګردان پخپله بیا د حل لارې پیدا کوي، د موضوع شننه ترسره کوي او یوې ټاکلې پایلې ته رسیږي.
په دې میتود کې د پرتلیزویا مقایسوي حالتونو او څرنګوالي څخه اغیزمنه ګټه اخیستل کیږي.

هغوی د يو لړ سوالونو او پرابلمونو سره مخامخوي. دې ته زده کوونکي هڅوي، چې يو د بل په څوابونو کې په تدريجی توگه زده کوونکي د ښوونکي په لارښونه اصلي درسي موخه پيدا او منطقي نتيجه اخيستنه وکولای شي.
په دی لړ کې د پوهې لمن پراختيا او ژورتيا مومي. دي ميتود ته د پيدا کولو، موندلو او د مسئلو د حل کولو د لارو چارو ميتود هم ویل شوی دئ.

## عملي يا نمايشي ميتود: (Demonstration Method)

دغه ميتود ننداريزه، نمايشي او د کتنې (مشاهدې) په دود ترسره کيږي.
د دې ميتود په کارولو سره زده کوونکي په ځانگړې توگه کوچنيان د ليدنې او کتنې په بهير کې نسبتاً اوريدلو او ويلو ته ډير څه په اغيزمنه توگه او ژر زده کوي، موخې ته ژر رسيږي. په دې ميتود کې ښوونکی يو کار، يو فعاليت په عملي توگه زده کوونکو ته ور زده کوي. د عملي کردار او کړنې په نتيجه کې زده کوونکي هغه ژرزده کوي.
په لنډه موده کې ډير معلومات او تجربې ترلاسه کولای شي. د عملي زده کړې په لړ کې شاگردان ډير مهارتونه زده کوي. يا دوي يې په ژوره توگه په ذهن کې ساتي.
د ښوونی او روزنې ماهرين وايي، چې: يوازې اوريدل هيريدل وي. کتنه او مشاهده زده کړه وي. عمل او پلي کول د تجربو په يو فعاليت پوهيدل وي.
د دې ځانگړنو په درلودلو سره نوموړی ميتود د تدريس او عملي ښودنې او کتنې په بهير کې د زده کوونکو لپاره يو غوره او اغيزمن ميتود پيژندل شوی دئ. ددې ميتود له لاري څخه پوهه، زده کړه او تجربه په ذهن کې تل پاتې کيږي او هم په اسانه توگه له ذهن څخه نه وزي.
د همدې ميتود په کارولو سره زده کوونکي فعاله او اغيزمنه پوهه او زده کړه ترلاسه کولی شي.

**هغه زده کړه او پوهه چې په خپله يې د عمل په ډګر کې لاسته راغلې. هغه پوهه په عملي توګه د ژوند په مختلفو اړخونو کې کارولی شي او اصلی موخې ته پری ځان رسوي او په عملي ژوند کې تر ګټه اخلي.**

**۲۳: ۳۸**

**دغه میتود چې کله ښوونکي کاروي، نو دغه لاندې ځلور پړاوونه (مرحلی) باید په پام کې ولري:**

***الف:* د چمتووالي یا تیارئ پړاو:**

***ب:* د تشریح او توضیح کولو پړاو:**

***ج:* د ښودنې یا کتنې پړاو:**

***د:* د ارزیابي یا ازمویلو پړاو:**

**اوس به په ترتیب سره په دغو مرحلو لنډې خبرې ولرو:**

***الف:* د چمتووالي یا تیاری پړاو:**

**په دې میتود کې د مضمون د تدریس په بهیر کې له وړاندې څخه باید د عملي تجربو او وسایلو د برابرولو او چمتوکولو غم خوړل شوی وي، یعنی لازم او د اړتیا وړ ځیزونه په ټولګي کې د زده کوونکو لپاره د میز پرسر موجود او یا په داسې ځایونو کې ایښودل شوي وي چې د ټولو زده کوونکو لپاره د لیدلو وړ وي. دغه میتود او پړاو په ساینسي علومو کې تر نورو ډیر د اړتیا وړ او لازمي بریښي. ښوونکي باید د تدریس له پیل څخه د مخه ټول هغه اسباب او وسایل چې عملي کار پرې کیږي، په دې پړاو کې آماده کړی وي. حتی داسې یې کتلی او ازمایلی وي، چې په درسي پروسه کې خنډ رامنځته نه شي. د همدې پړاو په ترسره کولو سره ټول هغه ځیزونه ښوونکي برابر وي، چې د وخت د ضایع کولو څخه مخنیوی وشي او په تدریس کې بیا ځنډ او ستونزه پیښه نه شي. په دې پړاو کې ښوونکی په هر اړخیزه توګه پاملرنه کوي، ټولګی، شاګرد او د درس چاپیریال او فضا رامنځته کوي. له روحي پلوه زده کوونکي د درس لپاره چمتو کوي. د صنف فضا اوریدلو، ویلو او لیدلو ته برابروي.**

**ب: د تشریح او توضیح پړاو:**

**په دې مرحله کې ښوونکي د ماډلونو، انځورونو، چارتونو او ضمني کیسو او له موضوع سره د تړلو څیزونو، تجربو په ښودلو، ویلو او وړاندې کولو سره درسي موضوع په اغیزمنه توګه تشریح او توضیح کوي. د اړتیا سره سم د برابر شوو موادو څخه کار اخلي، په ځای او په خپل وخت سره مرستندویه توکي کاروي. کارول شوي توکي باید په ساده ژبه او ساده الفاظو او جملو سره تشریح کړل شي. د تشریح ژبه په عمومي توګه باید ساده او د ژر پوهیدو وړ وي.**

**د تشریح په لړکې د لنډې پوښتنې، سوال، ځواب لپاره وخت ورکړ شي، چې درس یا تشریح ګټوره، اغیزمنه او د ټولو لپاره د پوهیدلو وړ وګرځي. په عملي یا نمایشي میتود کې د شاګردانو لپاره د عملي زده کړې شرایط برابر او د توکو په اړه معلومات ورکړ شي. ټول څیزونه او مفاهیم په ساده او اسانه توګه توضیح کړل شي. کومه توضیح او تشریح چې ورکړ شوي وي په هر شاګرد په عملي توګه ترسره کړي.**

**د وخت په پام کې نیولو سره د زده کوونکو ونډه چې هغوی فعال ساتي له یاده ونه ایستلی شي.**

ج: د نمایش یا ښودلو پړاو:

په دې پړاو کې ښوونکي له تشریح سره سم ځنې سمعي او بصري آلات په نندار یز ډول زده کوونکو ته ورښیي او په عملي ډګر کې هغه کاروي. د دغو نمایشي وسیلو په توګه دوه اړخیزه زده کړه ترسره کیدای شي. په دې خاطر چې درسي فعالیت یوازې په ښوونکي پورې محدود پاتې نه شي.
د نمایشي پړاو په ترسره کولو سره زده کړه دوامداره او اغیزمنه کیدلی شي.
ښوونکي د ښوونې په لړ کې داسې شرایط برابر کړي چې ټول زده کوونکي په ټولګی کې په سوالونو او ځوابونو کې په فعاله توګه ونډه واخلي، ټول په درسي پروسه کې برخمن واوسي.
د ښوونې یا نمایش په اړه د زده کوونکو پوښتنو ته قانع کوونکي ځوابونه ورکړل شي.

د: د آزمایښت یا ازمویلو پړاو:

دا هغه پړاو دی، چې له تدریس څخه وروسته ټول هغه مسائل چې ښوونکي د مختلفو فعالیتونو په لړ کې شاګردانو ته ور زده کړي او ورښودلي وي، په زده کوونکو تکرار او نیمګرتیاوې یې بشپړې کړي. له هغو څخه تشریح او توضیحات وغواړي. په همدې ډول خپل ورکړی درس وازمایي. که چیرې په کومه برخه کې ستونزه وي، په یو بل ټولګیوال دې هغه تکرار کړي. که اړتیاوي په څو تنو دې هغه موضوع بیا بیا د زده کوونکو په خوله تکرار کړي، تر هغه چې اصلي مطلب او موخې ترلاسه شي. په دې میتود کې تر ټولو غوره لاره او طریقه دا ده، چې زده کوونکو ته زمینه برابره کړای شي، چې هغوی یو د بل له معلوماتو او توضیحاتو څخه په عملي ډول اغیزمن شي، ټول هڅه وکړي چې تر دغه ازمیښت بریالي راووزي.
هغوی هر تن ته د ښوونکي په نقش او کردار کې ځای ورکړ شي، چې دغه عملیې ته په ښوونه او روزنه کې د (Role-play) ګړنه (اصطلاح) کارول کیږي. په دې رول کې زده کوونکي د مسؤلیت او ډاډمنتیا احساس کوي او باوري کیږي، د موضوع ټول تیاره ګوټونه روښانه کیږي.

**شاګرد ذهناً او جسماً موضوع اخيستني ته پاملرنه کوي. خپل حواس په ټاکلې موضوع باندې متمرکز کوي. د زده کړې ځواک يې پياوړی کوي. موضوع په واقعي او عيني توګه درک کوي.**

**ښوونکي کولای شي د موضوع او مضمون سره په تړاو کې خپل نظري او عملي هڅې او فعاليتونه داسې تنظيم کړي، چې د هماغه مضمون سره سمون ولري.**

**د ساري په توګه ښوونکی کولای شي د رياضي په مضمون کې په شاګردانو باندې د يو دکاندار په رول کې يوه تمثيلي لوبه ترسره کړي. په دې لړ کې د جمعې، منفي، ضرب او تقسيم عمليې په ننداربزه توګه زده کوونکو ته وروښيي. هغوی په اړوندو اصطلاحاتو وپوهوي. د رول پلې په نمايشي هڅو او فعاليت کې بايد دغه لاندې ټکو ته پاملرنه وشي.**

***لومړی:* د ننداري (نمايش) لپاره ټول درسي لوازم او شرايط برابرول.**

***دويم:* هغه موضوع چې ښودل کيږي او يا تمثيليږي په نمايشي ډول بايد وليکل شي.**

***دريم:* په ننداره يا نمايش کې د هر تن زده کوونکي دنده او نقش په ګوته کول او وربانديې تمرين کول.**

***څلورم:* هر شاګرد ته د هغه له ذوق او سويې سره سم د لوبولو دنده سپارل.**

***پنځم:* ټولو هغو زده کوونکو ته چې په دې درسي پروسه کې شامل وي د تمثيل اهداف او موخې له وړاندې څرګندې شي، په ځانګړي ډول اجرا کوونکي له مخکی څخه له ټاکلي برنامې څخه خبر او معلومات ولري.**

***شپږم:* د ښودنې (نمايش) څخه وروسته په موخو، (اهدافو) او موضوع باندې داسې بحث وشي چې ګډونوال يوه ټاکلې پايله ترلاسه کړي او هم هغه ارزيابي کړل شي.**

***اووم:* په ګډه يې اغيزمنتيا او د هر تن څرګندونې په دقت سره واوريدل شي، چې په نورو درسونو کې ترې ګټه واخيستل شي.**

# د تمرین او تکرار میتود

(Repitation and Practicing Method)

د ښوونې او روزنې د دودیزو میتودونو په لړ کې د (تمرین یا تکرار) میتود له پخوا څخه ډیر کاریږي. دغه میتود ډیر اغیزمن او د ښو پایلو لرونکی وي.

ښوونکي د تکرارولو او تمرین په مرسته کولای شي، ټاکلي درسي مفاهیم او مطالب په آسانه توګه د شاګردانو په ذهن کې ځای په ځای کړي. په دې ډول زده شوي مفاهیم تل د زده کوونکو په حافظه کې ځای نیسي، بیا په آسانه توګه له حافظې څخه نه وزي. تل کولاي شي هغه زده شوي مفاهیم په عملي ډول وکاروي او ګټه ترې واخلي.

تمرین مختلف او جلا جلا ډولونه لري. له هغو څخه د ځینو یادونه په لاندې توګه کولای شو:

حفظي تمرین- استنباطي تمرین- له نظره تیرونه (مرور) د عملي کولو تمرین.

*الف:* حفظي یا د حفظولو تمرین:

دغه ډول میخانیکي زده کړه او تمرین چې یوازې حافظې ته جملې سپارل کیږي، د تفکر او تعقل برخه پکې ډیره لږه وي چې ورته د حفظولو تمرین وایه شي. لکه د ضرب زباني جدول په یو ډول تکراري یا حفظي تمرین بللی شو. په دې ډول تمرین کې زده کوونکي یو مطلب په ډیرې محدودې مانا سره په تکرارولو او زور سره خپل ذهن ته سپاري. د موضوع اصلي مقصد ته چندان پام نه کوي.

د ساري په ډول یو زده کوونکی کیدای شي د افغانستان مساحت په تکراري توګه خپل ذهن ته وسپاري. په دی نه پوهیږي، چې طول البلد اوعرض البلد يې څومره دی؟ یوازې ارقام حافظې ته سپاري او په دي هم نه پوهیږي چې کوم مشهور سیندونه لري، او پیداوار ددي خاورې څه دي؟

**یا دې ته ورته نورې بیلګی...!**

**ب: استنباطی تمرین:**

**په دې تمرین کې د مختلفو تیوریو، نظریو څخه پایله ترلاسه کیدای شي.**

**نوموړی تمرین عقلی استدلال، خبرو اترو، د نویو مفهومونو او موقیعتونو له کارولو سره اړه مومي، سره له دې چې د تکرار ونډه په استنباطي میتود کې هم شته، مګر دغه تکرار یوه بڼه نه لري. دغه تمرینونه یو له بل سره په توپیر کې د یوې موضوع یا مفهوم په شاوخوا را څرخي.**

**کوم تمرینونه چې د هندسي قضیو په اړه ترسره کیږي او همدا ډول هغه مسایل چې زده کوونکي یي پر قضیو او دلایلو باندې له پوهې څخه وروسته حلوي، ورته استنباطي تمرین وایي.**

**ج: له نظره تیرونه (مرور) یا ځغلنده کتنه:**

**دا تمرین هغه وخت کارول کیږي، چې د یادو شوو مسآیلو او مطالبو په اړه پوهه لاپخه کړاي شي.**

**په ځغلند نظر پخوانی پوهه یا تجربه لا پیاوړې کول، یعنی هغه څه چې پخوا زده شوي وي یو ځل بیا په هغو مرور وشي. دغه مرور د موضوع د لنډیز، کره کولو، بشپړولو او طرح کولو په موخه چې په تجربو کې لاښه مهارت او پوهه زیاته شي له دغه میتود څخه کار اخیستل کیږي.**

**مرور په یوه درسي مطلب او موضوع باندې بیا راګرځیدل او په هغې باندې ښه ځان پوهول چې په عمل او نظر کې ترې بیا ګټه واخلي، په ذهن کې بیا د اړوندې موخې ژوندي کول او تازه کولوته ځغلنده کتنه او مرور ویلی شوي دي.**

**په دې کتنې یا مرور سره هغه برخې چې موضوع له ذهن څخه وتلې یا هیرې شوي وي بیرته را تازه کیدای شي او یا هم نیمګړې پوهه بډایه کیدلی شي. کیدای شي هغه پوهه یا تجربه په عمل او نظر کې د تل لپاره په ذهن کې ژوندۍ پاتې شي.**

**د: د کړنې یا (عمل) تمرین:**

دغه تمرین د خوځنده (حرکتي) او تخنیکي مهارتونو او تجربو د ترلاسه کولو او پیاوړي کولو په خاطر کارول کیږي. ورزشي تمرینونه او د کسبي او حرفوي مهارتونو د زده کړې لپاره عملي تمرینونه دي، چې ددې ځانګړنې د مخه یادې شوې.

ددې تمرین لپاره ښوونکي باید لاندې څو سپارښتنې په پام کې ولري.

*لومړی:* زده کوونکي باید تر ټولو د مخه په دې وپوهیږي، چې دغه تمرین د کومې موخې لپاره ترسره کوي.

*دویم:* د تمرین مهال باید ټاکلی وخت ونیسي، نه داسې چې یو ساعته تمرین په دوه ساعتونو کې ترسره شي.

*دریم:* زده کوونکو ته هغه ټاکلي تمرینونه ورکړل شي، چې په درسي پروسه کې ارزښت ولري، هغه چې له ښوونیزو مفهومونو او موخو سره مرسته کوي او ګټور تمامیږي. د درس د ارزښت د ښودنې لپاره زده کوونکو ته له ټاکلې اندازې زیات تمرین ورکول بې ګټې او مناسب نه برېښي.

د تمرینونو حجم باید د زده کوونکو له اړتیاوو او سویې سره سمون ولري. د تش مطلب له حفظ کولو څخه باید ډډه وشي.

یوازې حفظ کول باید موخه نه وي، ځکه چې د یو مطلب یوازې حفظ کول د هغه د پوهیدلو په مانا وي.

په هغه صورت کې د یو مطلب یا مفهوم حفظ کول جایز ګڼل کیږي چې د بنسټیزو اهدافو سر مرسته وکړي او یا ورسره تړاو ولري یا د هغه درس د هدفونو په ترلاسه کولو کې مرسته او اسانتیا وي رامنځته کړي.

ددې ټولو پړاوونو څخه وروسته دې ښوونکي درسي پلان چې د هغه له مخې خپل درس په ټولګي کې مخ ته بیایي د کاغذ پر مخ په لاندې توګه ترتیب او تنظیم کړي.

**پاملرنه وکړئ د هغه یو فورم یا د جدول بڼې ته چې د بیلګې په توګه ښودل شوي دي:**

# د لوست پلان

**ښوونځی:........................ موضوع: ........................**

**ټولګی: ............................**

**ساعت:...........................**

**ښوونکی:........................ د زده کوونکوشمېر:...........**

**مضمون:.......................... وخت او نیټه:.................**

| موخې (هدفونه) | درسي مواد او میتودونه | د لوست د تطبیق مرحلې او فعالیتونه | پایله (نتیجه) ارزیابي او کورنۍ دنده | د پلان بدلون (تغیر) او وړاندیزونه |
|---|---|---|---|---|
| الف: بنستیز یا اصلي هدف: دخدای ج رضا حاصلول ب: عمومي هدفونه: د ژبې د څلورو مهارتونوته وده او انکشاف ورکول اوریدل- خبرې کول لوستل او لیکل. ج: خصوصي موخې: د زده کوونکو پوهیدل د قرآنکریم په مفهوم باندې، چې نوموړی درس شاگردان | الف: توره تخته یا سپینه تخته چارتونه، فلش، رنګه مارکر، کارتونه د اړتیا نور وړ توکي. ب:درسي اصول او میتودونه: ننداریز میتود سمعي او بصري میتودونه. سوال ځواب میتود ګروپي یا ډله ایز میتود او درسي نور میتودونه | الف: د لوست د پیل پړاو: د سلام په اچولو سره ټولګي ته ننوتل، له زده کوونکو سره پوښتنه کول، د ټولګي ترتیب تنظیم، د کورنۍ دندې، کتنه،اوحاضري اخیستل. د شاګردانو رواني حالت له نظر تیرول چې آیا درسي فضا برابره ده او کنه! د تیر درس په اړه یوه لنډه ارزیابی: د نوي او زوړ درس ترمنځ اړیکه پیداکول. او هم د نوي درس لپاره انګیزه ایجادول چې درس په زړه پورې واقع شي. ب: د نوي درس لپاره د ښوونکي او زده کوونکو هڅې او ګتور فعالیتونه. د نوي درس پیل د (بسم الله الرحمن الرحیم) په ویلو سره، د نوي درس سرلیک (عنوان) په تخته او یا چارت کې لیکل، د درس نورې اړوندې برخې د تختې یا چارت له مخې د ښوونکي له خوا لوستل او تکرارول او همدا ډول په زده کوونکو اړونده موضوع په وارسره تکرارول او زده کول. | الف: د نوي درس ارزیابي کول، قرآن کریم د چا کتاب دی؟ قرآن کریم د چا په واسطه سره په حضرت محمد (ص) نازل شوی دی؟ ب: دلوست پایله. ج: کورنۍ دنده نوموړی درس په کورکې مطالعه کړئ او دوه ځله یې په خپلو کتابچوکې په ښه خط سره چې د لوستلو وړ | الف: د پلان بدلون (تغیر) ب: ستونزې او مشکلات ج: د زده کوونکو هیلې او غوښتنې وړاندیزونه، د نوي او راتلونکي درس په اړه د ګډونوالونظر! |

| | | | | |
|---|---|---|---|---|
| ولیکلی شي او هم يې ولولی او په مانا يې پوه شي. | | او یا د بحث موضوع د کتاب له مخې په زده کوونکو لوستل. په داسې حال کې چې ښوونکی يې نیمګړتیاوې په هماغه شیبه کې ور پوره کړي.<br>په وار سره د کتاب له مخې تکرار او لوستل- د کارتونو کارول، دفلش کارتونو استعمال په وارسره- په ګروپې او ډله ایزه توګه فعالیتونه تر سره کول، په توره او سپینه تخته د مارکر قلم پواسطه لیکل او په زده کوونکو باندې هغه لوستل. | وي ولیکی. | |

**۲۲: ۲۳– ۲۴**

| موخې (هدفونه) | درسي مواد او میتودونه | د لوست د پلي کولو (تطبیق) پړاوونه. د نن ورځې یا درسي ساعت د چمتوالي د هڅو او فعالیتونو په اړه فکر کول چې څه باید تر سره شي. | پایله (نتیجه) ارزیابي او کورنۍ دنده | د پلان بدلون (تغیر) او وړاندیزونه |
|---|---|---|---|---|
| ۱- اصلی اوبنسټیزه موخه: | ۱- درسي توکي (مواد) او د اړتیا وړ څیزونه. | الف: د نوی درس د پیل څخه د مخه:<br>سلام اچول- له شاګردانو څخه د جوړ ناجوړ پوښتنه، د ټولګي د فضا برابرول او له نظره تیرول، د ټولګي نظم او رواني حالت په پام کې نیول او کتنه! | ۱- ارزیابی<br>___<br>___<br>___<br>___ | ۱- ستونزې |
| ۲- مضمون عمومي موخه | ● _<br>● _<br>● _<br>● _<br>● _ | حاضري اخیستل- کورنۍ دنده کتل- د تیر لوست پوښتنه او له نوی درس سره د یوی انګیزې د پیدا کولو په وسیله اړیکه ټینګول- د کیسې یا سوال په مطرح کولو سره! | ۲- پایله | ۲- وړاندیزونه |
| ۳- د لوست خصوصي موخه: | ۳- د تدریس میتودونه او لارې چارې او روښونه<br>● _<br>● _<br>● _<br>● _ | ب: د تدریس عملي بهیر(د نوي درس هڅې او وړفعالیتونه)<br>د ښوونکي فعالیتونه<br>۱-<br>۲-<br>۳-<br>د زده کوونکو فعالیتونه<br>۱-<br>۲-<br>۳- | ۳- کورنۍ دنده | -<br>-<br>-<br>- |
| | | | | |

**۱۷: ۲۳**

# په فعاله یا ښکارنده زده کړه کې د ښوونکي او زده کوونکي دنده

د ژبې او ادبیاتو د تدریس په عملي میتودونوکې هم د نورو څانګو د تدریس د میتودونو په څېر یو ښوونکی ژبه هم داسې تدریسوي او خپل فعالیت د شاګرد محوری او فعالې زده کړې اصولو پر بنسټ برابروي.

په دې لړکې د مختلفو سر چینو او منابعو څخه کار اخیستل کیږی. ګروپونه او ډله د زده کوونکو په داسې ډول ویشل کیږي، چې یوه د بلې سره مثبتې سیالی او سالم رقابت ته چې د هغوی د سویې او زده کړې او پراختیا او پیاوړتیا لامل کیدای شي هڅول کیږي. ښوونکي ورته داسې شرایط برابر وي، چې د زده کوونکو لپاره اسانتیاوې او ژر زده کړه رامنځته کړای شي.

زده کوونکي په خپل درسي فعالیت کې برخمن کوي. د زده کړې وسایل لکه، فلم، عکسونه، انځورونه د کمپیوټر او انټرنیټ څخه ګټه اخیستل او داسې نور وسایل او شرایط برابرول، چې د زده کړې له بهیر سره مرسته وکړای شي. د کلمو، جملو او عبارتونو د تلفظ، اوریدلو او غوړنیولو له لارې به زده کړه په دوه اړخیزه توګه ترسره شي. د تیر درس او نوي درس تکرار او د پیل لپاره زده کوونکو ته انګیزه ورکول، چې درس د ټولو لپاره په زړه پورې شي. د کیسو، شعرونو، لطیفو په ویلو، غوړ نیولو سره د زده کوونکو د مهارتونو او وړتیاوو (قابلیتونو) لوړول، د ګډو هڅو په پایله کې ممکن کیدای شي.

د ښوونکو په لارښوونه او مرستې سره د شاګردانو ترمنځ مشکل لغتونه، ګړنې (اصطلاح)، جملې املایي بڼې، د کلمو مختلفې ماناوې او مترادفو لغتونو کارونه ښودل کیداي او ستونزې حل کیدلی شي.

د زده کوونکو ترمنځ د سوال ځواب په لړکې مبهمې ګړنې، چې یو ډول تلفظ کیږي او داسې نورې کلمې او لغتونه چې یو ډول لیکل کیږي او مختلفې

ماناوې لري په شاګردانو پیدا او په ګوته شي، چې ټول ګروپونه او زده کوونکي پرې پوه شي. هغه په توره تخته ولیکي او نورو ټولوته يي واوروي، سوالونه په خپل منځ کې اوهم د ښوونکي په مرسته حل کړل شي. په ټولګي کې درسي فعالیتونه ویشل کیږي. هر یو تن ته د خبرو، شعر ویلو وخت ورکول کیږي، دګروپو ترمنځ سوالونه او ځوابونه ترسره کیږی.

هر یو په وار سره د خپلو ټولګیوالو په مخ کې دریږي. سوالونه مطرح کوي، ډول ډول مطالب او هغه مضامین لولي چې له شاګردانو سره د املاء انشاء په برخه کې مرسته کوي. د سوالونو په وړاندې ځوابونه ورکوي، ښوونکی بې تفاوته نه وي، ټوله درسي پروسه څاري او په تشریح کې برخه اخلي.

د ژبې او ادب په اړه عمومي معلومات هم ورکوي، هنري او ادبي هڅې، آثار او کتابونه په ملي او بین المللي کچه ورپیژني، زده کوونکي د ډالۍ او د هغو د عکسونو او لنډې پیژندنې یا بیوګرافي د نشرولو په واسطه لاوهڅوي، چې په اخبار، مجلو او نورو د یوالي جریدو کې خپل مضامین او نوشتې چې د دوي د هڅونې او تشویق سبب کیږي خپرولوته وسپارل شي. د صنفي ازموینو، کورني کار او نهایي آزموینو له لارې زده کوونکي په کار واچول شي، د پلان سره سمې دغه هڅې د شاګرد محوری ځانګړنې ګڼل کیږي، چی ښوونکی ورته د اصولو پر بنسټ شرایط برابروي. شاګرد ته که چیرې د فعالې زده کړې شرایط برابر نه کړل شي، یوازې په ټولګي کې د هغه فزیکي شتون او نه برخمن کول، د زده کړې په بهیر منفي اغیزې ښندي او فعاله زده کړه چې د ګډ فعالیت په بهیر (ښوونکي، زده کوونکي) کې را منځته کیږي صورت نه نیسي. شاګرد په دې ډول یوازې جسمي یا فزیکي لیدونکي پاتې کیږي. ټول درسي فعالیت د ښوونکي په محور راڅرخي چې په دې ډول زده کړه په سمه توګه نه ترسره کیږي، نو لازمه ده، چی آموز ګار یا ښوونکی د تعلیم او تربیې د اصولو سره سم په تدریس کې له درسي نویو روشونو څخه کار واخلي چې د

اوسني (معاصرې) ښوونې او روزنې غوښتنوته د اړتیا سره سم د شاګرد محوری او فعالې زده کړې پر بنسټ ځواب وویلی شي.
د فعالې زده کړې لپاره باید دغه لاندې درې ټکي ښوونکی په پام کې ولري او هغه باید پلي کړي:

## ۱. د زده کړې یا د یادولو تجربوته پراختیا ورکول:

په دودیزه او سنتي زده کړه کی، زده کوونکي باید متن مطالعه او د ښوونکي خبروته غوږونیسي. په دې ډول زده کړه کې د زده کوونکو تر منځ خبرې کول او اړیکې محدودې وي. د دې په خاطر چې زده کوونکې فعال شي او د زده کړې لپاره ښه فضأ رامنځته شي، نو زده کوونکي باید په وړو یا کوچنیو ډلو وویشل شي او په مختلفو برخوکې دې فعالیت ترسره کړي. وروسته له درسي فعالیت څخه د خپل کار او فعالیت د پایلو په اړه دې د خپل ښوونکي سره خبرې اترې وکړي، هغه پوښتنې چی ښوونکی یې ورڅخه مطرح کوي، ورته ځوابونه ووایي. زده کوونکي دې داسې لارې چارې ولټوي او خپلو خبرو اتروته دې پراختیا ورکړي، چې ټولګیوالو او له ټولګي څخه بهر مسلکي او تجربه لرونکو کسانو سره اړیکې وساتي. ۱۲: ۲۸
د مستقیمې او غیرې مستقیمې لیدنې کتنې امکانات دې زده کوونکو ته برابر کړای شي. داسې تدابیر دې ورته خپل کړای شي چې زده کوونکي په عملي ډګر کې فعالیت تر سره کړي.

### ۲. له ګډ ځواک څخه ګټه اخیستنه (Power of interaction)

لکه څرنګه چې هر یو له څلورو فعالیتونو څخه (له ځان سره خبرې، او له نورو سره خبرې، لیدنه، کتنه، او ترسره کول یا انجامول) په یوازې ډول هغه مهال ارزښت لري، چې یو له بل سره د یادولو په کار او فعالیت کې ورڅخه کار واخیستل شي. له ګډو هڅو او کار څخه د یادونو پلویان د مسئلود حل لپاره

وړاندیز کوي، چې ښوونکی باید په عمل کې د مسئلي په طرح کولو په واقعي ډول پیل وکړي.
وروسته بیاله له زده کوونکو څخه د ګډې مشورې او د مسئلې د حل غوښتنه وشي یعنی (یو له بل سره خبرې) کول.
زده کوونکي په دغو فعالیتونو کې خپلې او د نورو تجربې اوري عملي، کوي یې او وینې یې.

### ۳. استدلال (Dialectic):

د تجربې اوخبرو کولو په منځ کې یو بل روش چې د پیاوړتیا او بشپړتیا د اصل سره یوځای (Principle Interaction) مرسته کوي، هغه د تجربو او خبروپه منځ کې د استدلال ویل او ارایه کول دي، چې نوي تجربې او په عملي توګه نوي کتنې او مشاهدې، نوي نظرونه، تازه زده کړه، زده کوونکو ته حاصلوي. د یو سړي استدلال د ځان او له نورو سره کیداي شې د زده کوونکو د ژورې او پراخې زده کړې لامل وګرځي. کیدای شي په دې لړ کې ډیر نوي مطالب زده کړای شي.

## د شاګرد محوری د زده کړې ځانګړنې:

- تدریس او متمرکزه زده کړه نسبت د ښوونکي یا معلم فعالیت ته د زده کوونکي فعالیت او ذهني برخه اخیستنه زیاته وي.
- زده کوونکي په ټولګي کې علاقمند او په فعال ډول د زده کړې په بهیرکې بوخت وي.
- د فعالیت تمرکز ډیر د زده کوونکو په اړتیاوو او د هغو په علایقو پورې اړوند وي.
- زده کوونکي یا شاګردان د زده کړې په عملیه کې یو له بل سره مرسته کوي.

- شاګردان په خپله خپل پرابلمونه حلوي، په داسې شرايطو کې واقع کيږي، چې د مسايلو د حل لپاره مباحثې او استدلال لورته مخه کوي، په هغو موضوعاتو چې په پام کې يې وي خبرې او بحث کوي.
- زده کوونکي ډير له اوريدلو څخه فکرمن کيږي، په دې پوهيږي، چې څه ډول زده کړيز مواد په داخل د ټولګي کې وکاروي.
- زده کړه جوړونکې او څواږ خيزه ترسره کيږي.

## په شاګرد محوري سيستم کې د ښوونکي رول په ټولګي يا صنف کې:

- ښوونکي د شرايطو برابرونکي او لارښود وي.
- معلم د شاګردانو يا زده کوونکو د ګډې يا مشترکې علاقې په لټه کې وي.
- زده کوونکو ته لارښوونه کوي، چې هغوی په آينده کې نوښت ګرو اوسي او د هغوی استعدادونه پياوړتيا ومومي.
- زده کړيزې تجربې ورته برابروي، تعليمي او تربيتي موخې ورته په پام کې لري.
- زده کوونکي داسې چمتو کوي، چې د زده کړې په مهال ښکارنده رول ولوبوي.
- هر زده کوونکي ته يا ګروپ ته د هغوی د استعداد او فهم سره سم وخت په پام کې نيسي.

### ښکارنده (فعال) روش: (Active method)

په دې ډول روش کې موخه داده، چې زده کوونکي د زده کړې په مهال کې فعال او خوځند (متحرک) وي.

البته هیڅ ډول روش په هیڅ ډول غیرې فعال نه وي، د ساري په توګه د خبرو یا لکچر په مهال معلم فعال او زده کوونکي غوږ نیونکي او په ظاهري ډول غیرې فعال وي، اما هغوی په ذهني ډول فعال وي. ځکه چې د آموزګار خبروته غوږ نیسي، او د هغو مطالبو په اړه فکر کوي او هغه یاداشت کوي.

سره د دې نن ورځ ډیر ښوونکي د غیرې فعالې زده کړې څخه فعالې زده کړې ته مخه کوي، چې د زده کوونکو د زده کړې لپاره نوي روشونه او د هغوی فعال کولو ته چې زده کړه وکړي لارې چارې پیدا کوي.

دغه لاندې بیلګه د یوې فعالې زده کړې لارښونه کولای شي.

| خبرې له | تجربه |
| --- | --- |
| ځان سره | کتنه (مشاهده) |
| نورو سره | ترسره کول یا انجامول |

پورتني بیلګه راښیي، چې د یادولو فعالیتونه د خبرو اترو او تجربې سره مل وي.

دغه (خبرې) په دوه ډوله وي. ((له ځان سره خبرې)) او ((له نورو سره خبرې))!

همدارنګه دوه ډوله تجربې: ((لیدنه، کتنه یا مشاهده کول)) او ((ترسره کول)) دي.

**۱. له ځان سره خبرې:** دغه ډول خبرې هغه مهال تر سره کیږي، چې زده کوونکي د اړوندې موضوع په اړه فکر کوي. مثلاً: له ځانه څخه پوښتي، چې د څه شي په هکله فکر کوي، یا باید فکر وکړي، څه احساس د موضوع په اړه لري. په حقیقت کې له ځان سره خبرې کول د خپل ځان په اړه د ټاکلې موضوع په اړه تفکر وي.

۲. له نورو سره خبرې کول: **دغه خبرې کول په مختلفو بڼو سره ترسره کیږي، په دودیزه یا سنتي تدریس کې زده کوونکي خبروته یا لکچر ته غوږ نیسي، په**

حقیقت کې (معلم یا مؤلف د کتاب) ته زده کوونکي غوږ نیسي، چې دغه یوه اړخیزه اړیکه کیدای شي. چې د نظریاتو تبادل صورت نه نیسي. د خبر ښه او ښکارنده ونډه هغه مهال رامنځته کیدلی شي، چې له نورو سره د خبرو کولو امکان شتون ولري.

*مثلاً:* په دې برخه کې ښوونکی د ګډې مباحثې او یادولو له روش څخه ګټه اخلي او په وړو ګروپونو کې زده کوونکي تنظیموي، اړیکې سره ټینګوي او هم بهر له مدرسې څخه د نظر خاوندانو او بافهمه افرادو سره په تماس کې وي. یا د انترنت له لارې معلومات او اړیکې ساتي، چې د دوي ترمنځ معلومات ډیر او پوهه زیاته او زده کړه غني شي.

د (Rule Play) او نورو اړیکو په درلودلو سره زده کړه په ژوره توګه وده مومي او دغه خبرې کول پر پوهې او تجربې مثبتې اغیزې ښندي.

**د تجربې کتنه (مشاهده):**

دغه کتنه یا مشاهده هغه مهال ترسره کیږي، چې یو زده کوونکی د بل زده کوونکی د یادولو او فعالیت بهیر ویني. لکه د هغه د کار روش او د ازمایلو یا ازمایښت نورې وسیلې او یا لابراتوار چې په عیني بڼه یې ګوري.

یا د یوه داستان د لوستلو او نقد کولو لارې چارې او یا د نورو ټولنیزو، طبیعي او فرهنګي پدیدو په مستقیم او غیرې مستقیم (Vicarious) یعنې غیرې واقعی پدیدو لیدنه کول چې په عیني توګه یې نه شو مشاهده کولی.

مستقیمه مشاهده په عملي توګه لیدل کیږي او غیرې مستقیمه لیدنه یا کتنه لکه د یوې فلمي سناریو کتل او یا اوریدل چې غیرې مستقیمه بڼه لري. د ساري په توګه: د فقر لیدنه په یو کلي او بانډه کې په خپلو سترګو یوه عیني تجربه او مشاهده ګڼل کیږي، اما د یوه داستان او کیسې په انځور کې هغه څه نه شو مشاهده کولاي، چې د سترګو لیدلی یا کتلی حال وي، نو ځکه ورته غیر

**مستقیمه مشاهده ویلی شو لکه د بینوایان په کتاب کې د هغه داستان، یا د الفت له نثرونو څخه (دوی جنازې) یا دولی شوچې غیر مستقیمه مشاهده څرگندوي.**

## د سرته رسولو یا انجامولو تجربه:

**دغه سرته رسونه په هر ډول فعالیت سره ترسره کیږي، چې زده کوونکي د یادولو په خاطر هغه کاروي.**

**_مثلاً:_ د یوې جغرافیایي نقشې انځورول، د یوې آزموینې د اخیستلو طرح جوړول په یوه ازمایشگاه کې د یوه ادبي مطلب نقد کول یا کره کول او دیوې تاریخي موضوع ارزونه کول. د(تعامل د اصل) په خاطر یو بل روش هغه د ښه والي او و دې لپاره چې د تجربې او خبرو ترمنځ واقع شي، هغه استدلال کول دي، چې باید تر سره شي. نوی تجربې چې ممکن وي د عمل یا مشاهدې له لارې حاصل کړل شي.**

**نوی نظر د زده کوونکو سره ایجادیږي. د فرد استدلال د ځان او نورو سره ددې سبب کیږي، چې پوهه لاژوره او پیاوړې شي. له مطالبو څخه پراخه پوهه ترلاسه کیدلی شي.**

**د تعلیم او تربیې پوهانو تجربه کړې ده چې زده کړه هغه مهال ښه ترسره کیږي، چې زده کوونکي علاقه ولري او هم یودبل په څنگ کې په فعاله توگه په مینې سره په درس کې ډیره برخه واخلي او تمرین په عملي توگه اجرا کړي.**

**زده کوونکو ته زیاته ونډه ورکړی شي. په فعاله زده کړه کې پوهه او علم حاصلیږي. په دې عملیه کې د اوریدلو، لیدلو، فکرکولو، خبروکولو حواس برخمن وي او عمل تر سره کیږي چې هره تجربه د زده کړې په بهیر اغیزه کوي. ۱۶: ۴۸**

## د تدریس د روش ارزښت

**د تدریس د روش ارزښت او اهمیت په دې کې دی، چې شاګردان په ځیر تیا (دقت) سره په ژوره توګه دايمي او بنستیزه زده کړه حاصلوي. هغه ښوونکي چې روش پیژني او په مناسبه موقع کې ترې ګټه اخلي، ټول کسان او په ځانګړې توګه شاګردان هغه د یو پوه او با فهمه ښوونکي په صفت پیژني.**

**که چیرې ګران ښوونکي وکولای شي (او باید وکولای شي) نوي روشونه چې د فعال تدریس یا ښه په نامه سره یادیږي، په منظم او سیستماتیک ډول په کار واچوي. په دې لړکې شاګردان لاندې ځانګړنې او مهارتونه خپلوي او پیاوړتیا مومي.**

1. **په لومړي سرکې شاګردان ژمن کوي، چې د ټولنیزو او فرهنګي مسایلو په نسبت په ځان کې بدلون رامنځ ته کړي.**
2. **د شاګردانو په وجود کې خلاقیت او نویوالی پیاوړی او تقویه کوي.**
3. **په ورځینو چارو کې شاګردان د مستقلې لارښوونې په ترسره کولو باندي لاس بري کیږي.**
4. **په زده کوونکو کې د همدردۍ، عاطفې، یوالي، ځواک او صبر کچې لوړ وي.**
5. **ځان او نور په ښه توګه پیژندلی شي.**
6. **د زده کوونکو ذهني پیاوړتیا پراختیا مومي.**
7. **شاګردان په ټولنیزو کارونو کې فعال ګډون او د هغو مسایلو حل ته هڅوي.**
8. **د پوهیدنې مهارتونه زده کوونکي پیاوړتیا ته وربولي.**
9. **څه ډول د پوهیدنې مهارتونه پیاوړتیا مومي.**
10. **په ځان کنترول او د خپل چاپیریال کنترول، مهارت او پوهه، پیدا کوي.**
11. **په خپل نفس باور (اعتماد) او ټولوته درناوی رامنځته کیږي.**

۱۲. د اختلافاتو زغم، تیری، د ژوند توپیرونه او داسې نور په ژوند پورې اړونده پدیدې په ښه او اګاهانه توګه درک کولی شي.
۱۳. د پوهانو الواکونه (نظریات) منل.
۱۴. د استدلال او منطق وده او همدا ډول په لس ګونو نورې ځانګړنې او نور مهارتونه.

## د ژبې د تدریس د ځانګړي میتود موخه

پخوا داسې دود و، چې هر چا به چې په یوه مسلک او پوهه (علم) کې لاس درلود.
هغه به کولای شو، چې د هماغه اړوند مسلک په ور زده کولو کې برخه واخلي او هغه ته ژمن ووسي چې نورو ته یې ور زده کړي. په دې کې هیڅ شک نشته، چې حاصل کړې پوهه او مهارت به نورو ته ولیږدوي، مګر پوهیدل او د نورو پوهول بیا دوې جلا لارې دي چې په هغو بلدتیا او ځانګړنې سره توپیر لري.
هره پوهه د تدریس ښوونکي ته اړتیا لري او هر ښوونکی باید د اړوندې ځانګې په ځانګړو میتودونو سمبال وي. سره ددې، چې د تدریس عام میتودونه په ورزده کولو کې کارول کیږي.
مګر ددې په خوا کې د تدریس ځانګړي میتودونه شتون لري، چې د هر مضمون د ځانګړنو سره سم په درسي یا تدریسي بهیر کې کارول کیږي.
هر ښوونکی باید د تدریس د عامو میتودونو په څنګ کې په ځانګړو (اختصاصي) میتودونو هم وپوهیږي. په دې خاطر چې د اړوند مضمون د زده کړې بهیر او چاپیریال زده کوونکو ته اغیزمن او ډاډمن شي. لنډه دا چې معلم باید د ځانګړې ځانګې د تدریس کولو او ټاکلو مضامینو په ځانګړو میتودونو وپوهیږي. په دې لړ کې به د ژبې د زده کړې او د هغې د تدریس په اړه لنډې څرګندونې ولرو:

**ولې ژبه زده کوو یا لولو؟**

**انسان د یوه ټولنیز مخلوق په توګه چې د لوړ شعور څښتن دی، د څیزونو په تولید او د هغو د ځانګړنو، تولید او کارونې په هکله تر نورو ټولو موجوداتو زیات پوهیږي، اشرف د مخلوقاتو ګڼل شوی دئ.**

**انسان د ژوند کولو په بهیرکې، په دې خاطر چې خپل ژواک ته دوام ورکړي حرکت کوي.**

**نوې پدیدې او څیزونه پیژني او د ځان په ګټه یې کاروي. د څیزونو اړتیا پیژني، ځان پرې پوهوي، نورو ته خپل پوهه او تجربه لیږدوي. ددې تجربو اړتیاوو، پیژندنې او پوهې د انتقال ښه وسیله نورو همځیلو (انسانانو) ته همدا ژبه ده.**

**څومره چې انسان په دې ارت او پراخه طبیعت کې لاس او پښې ووهلې، طبیعی پیښو سره مخ شو، د هغو سره یې مقابله او مجادله وکړه، د ځان لپاره یې په هر زمان کې بېلابېل لارې چارې ومومندلې. د وخت او مهال په تیریدو سره یې د ژبې له لارې دغه تجربې راتلونکو نسلونو ته پریښودې. همدغه ژبه د بدلون او پرمختیا وسیله وګرځیده! ژبه د انسانانو تر منځ د ګډکار، تفکر او اړیکو د پیدا کیدو لامل شوله. د تیرو زمانو د تجربو، بدلون او پوهاوي لړۍ د انځوریزی ژبې (خط) په واسطه تر پخوا او ورځ تر بلې د انسانانو د مادي او معنوي ژوند ارزښتونه په څرګنده توګه د همدې وسیلې پواسطه پاتې او لا راڅرګندیږي. ۸: ۲۵۰**

**نو له همدې کبله ژبه زده کوو، چې لاندې ټولنیزې موخې پرې حاصلیږي.**

**۱. د دې لپاره چې انسانان خپلې تجربې او فکر سره شریک کړي.**

**۲. د انسان د تصور، خیال، پوهې، عقل، کچه پرې معلومیږي.**

**۳. د انسانانو تر منځ اړیکې، فکرونه او تجربې د همدې په واسطه خوندي کیږي.**

۴. دیني، مذهبي لارښوونې او نورې مادي، معنوي فرهنګي چارې پرې ترلاسه کیدای شي.
۵. په ټولنیزه توګه ویلی شو، چې ژبه د فکر (استر) ده، په ښوونه او روزنه کې بنسټیز رول لوبوي.
۶. د ژبې د زده کړې په صورت کې د انسانانو تر منځ د ژوند کولو او ګډ تفکر لارې چارې اسانیږي.
۷. په ټولنه کې یوازینۍ لومړۍ ارتباطی وسیله د انسانانو تر منځ همدا ژبه ده، اشارې او علامه یې یا سمبولیکې بڼې لري.
۸. د بشر لومړنۍ اختراع همدا ژبه ده، چې د نورو اختراعاتو او پرمختیا وو لپاره سریزه ګڼل کیدای شي.
۹. یوه ټولنیزه اکتسابي پدیده ده، چې د انسانانو او ټولنو تر منځ په قراردادي توګه د پوهولو او راپوهولو لپاره کارول کیږي.

## په ښوونځیو کې د پښتو ژبې تدریس

ژبه په ټولنه کې د پوهولو او راپوهولو یا افهام او تفهیم وسیله ده، چې په قراردادي بڼه د خط، علامو، سمبولونو، اشارو، غږونو او یو شمېر حرکتونو په بڼه په شفاهي او لیکني (تحریري) ډول رامنځته کیږي.

پردینان دوسوسور وایې: « ژبه یو مجرد ذهنی بالقوه امر دی چی په دوه وسیلو عینی او محسوس صورت بالفعل عامل د تفهیم او تفاهم ګرځی. دغه دوه وسیلی عبارت دی له : (صوت) او (خط) څخه خط او صوت دواړه د محسوسی، ( اوریدونکی ) او (لیدونکی) د ژبی د ذهنی نظام منعکس کونکی دي. ۱۹: ۶۱

ژبه یو مهارت دی، چې د خبرو کولو په واسطه پیاوړتیا مومي. د ژبې په تدریس کې تر ټولو مهمه داده، چې زده کوونکي د خبروکولو، پوښتنو، بحث کولو او یو لړ درسي فعالیتونو او هڅو ته وهڅول شي، چې په هغو کې د خبرو

**او اترو اړتیا ډېره وي. د ژبې په تدریس کې باید لاندې وړتیا وو یا قابلیتونو ته پاملرنه وشي.**

***الف:*** **د لوستلو او ویلو موخه پوهیدل او مفهوم اخیستل دي. دودیز تدریس یعني لیکلې علامې او اشارې په آواز بدلولو متمرکز وي. د مفهوم اخیستلو ډول ډول تمرینونه او فعالیتونه دې ترسره شي.**

**د سارې په ډول: په پټه خوله لوستل به یو مناسب فعالیت نه وي. د ټاکلي متن په اړه پوښتنې کول، ځوابونه یو بل ته ویل، په بل عبارت سره مطلب افاده کول او یو لړ نور داسې فعالیتونه ترسره کول، چې ښوونکي ته اړین وبریښي.**

**په دودیز ډول له کتاب څخه تمرین لیکل او کاپي کول ښايي په لومړیو کې یو مناسب کار او اړتیاوي.**

**خو دغه کار بیا له ځان څخه د لیکنې مهارتونو ته وده نه شي ورکولای. یو څیز تشریح کول، پیښې په نثر انځورول، خپلې خبرې لیکل، لارښوونې لیکل، نور توضیحات او نور لیکنې فعالیتونه باید په تدرسي فعالیتونو کې ورشامل کړای شي.**

**له ځانه د لیکلو د مهارت په پیاوړتیا کې لاندې فعالیتونه ګټور د پاملرنې وړدي.**

- **د لیکنې لپاره باید تمرینونه ترسره شي، چې زده کوونکي د خپل فکر د لیږدولو لپاره چمتو کړای شي.**
- **داسې لیکنې تمرینونه ترسره کړي، چې الفاظ او مفاهیم په منظم او منطقي توګه ولیکلی شي او د جوړښت پوهه ترلاسه کړي.**
- **د لغاتو د ذخیرې زیاتوالی په داسې تمرین سره چې: د کلمو اشتقاق اصلي ریښې، مترادف، مشابه یا ورته لغتونه او هم مانیز، ډېر مانیزې، متضادې کلمې پکې څرګندې او وښودل شي.**

- د لغتونو ډولونه زده کوونکو ته په ګوته شي، په هغو باندې د لغتونو تلفظ، جمع، مفرد، مترادف، مشابه، متضادې معناوې په عملي توګه د پروګرام د منځپانګې سره د هغوی د سويې سره سم وکارول شي، چې شاګردان نوي کلمې او لغتونه زده کړي.
- د ژبې د نظم او نثر هغه برخې چې اړتيا ورته موجوده وي، زده کوونکو ته ورو‌پېژندل شي، چې زده کوونکي ساده نظم په نثر وليکلی شي. د نثر او نظم لوستلو، ليکلو اصول او قاعدې بايد د هغو د پوهې د سطحې سره سم وروښودل شي. د ساري په توګه يو متن لوستل څه ډول ځانګړنې بايد په لازم وخت، ځای او مهال کې له موضوعاتو سره سم خپلې کړي. د اواز لوړوالی، ټيټوالی، تعجب، خبر په څرنګه ډول ادا کړای شي. ښوونه ورته وشي چې اوږده درسونه او متنونه خلاصه کړلی شي.
- ښوونکی د يو متن فني، هنري او ګرامري، اخلاقي، فرهنګي، مذهبي، ديني او نورې برخې د تدريس په بهير کې شاګردانو ته د هغوی د سويې او پوهې سره سم چې د اړوند مضمون په پروګرام کې شاملې وي څرګندوي، د ساري په توګه د بيت نيکه په اړه معلومات او د هغه د منظوم کلام په اړه معلومات او اړونده اړينې څرګندونې د زده کوونکو، ښوونکو او نورو پوهانو د يو بل په مرسته حاصلول.
- د املاء (ليک دود) په برخه کې زده کوونکي وکولای شي د کلمې، جملې سمه واحده دوديزه بڼه چې په ليک دود کې منل شوي وي ليکي.
- د مختلفو ګړنو (اصطلاحاتو) کلمو، لغتونو او يو شمېر مفاهيمو په ورکړې سره شاګردان د يوې انشاء يا ليک ښود لپاره، چې يو مضمون ترې جوړ کړای شي وهڅوي او په هغوی يې تمرين وکړي. هغوی ته په دې برخه کې وړ لارښوونې وکړي.

- مختلف موضوعات دې ورته په مجسم ډول تدريس شي، چې د هغوی ټول حواس په کار ولويږي.

کيسه، حکايتونه، تاريخي پيښې دې په ننداريزه توګه په زده کوونکو باندې په ټولګي کې اجراء کړل شي.

- شاګردانو ته دې په ساده جملو او متن کې ګرامري لارښوونې، ليک نښې يا د تنقيط؟ نښې او علامات په عملي بڼه ور وښودل شي.

په لنډه توګه ويلی شو، چې د يوې ژبې د تدريس لپاره دغه برخې اړينې بريښي. ښوونکي بايد دا برخې په پام کې ولري.

د ژبې بنستيز مهارتونه- املايي برخه يا ليک دود- د انشاء وده يا ليک ښود- د ژبې ګرامر برخه- د لغتونو ذخيره کول- د نظم برخه او هم د نثر برخه او په هغه کې په عملي توګه د ليک نښو يا تنقيط علامې يا نښې کارول.

## د پښتو ژبې په تدريس کې موخې (هدفونه):

په عمومي توګه د ژبې په تدريس کې يو ښوونکی بايد لاندې مهم ټکې يا موخې په پام کې ولري:

۱. په لومړي سر کې بايد د ژبې د زده کړې څلور مهارتونه د زده کړې لپاره په عملي توګه په زده کوونکو يا ټولګي کې اجراء شي.

۲. دمتن، کيسو، ډول ليکنو څخه د جاج (مفهوم) اخيستل او وړتياوې زياتول.

۳. په ملي او فرهنګي ارزښتونو پوهيدنه- او ټولنيز او انفرادي مسؤليتونه درک کول.

۴. کورنۍ، ملي او په نړيواله کچه د مسؤليت احساس.

۵. دسمې افادې خبرو اترو او دخپلو نظرياتو دڅرګندولو لارې چارې (طريقې) زده کول.

۶. د زده کوونکو ذهني ودې او نړۍ ليد (جهان بينی) ته پراختيا ورکول.

# د لمړی څپرکی لنډیز

میتود یوه یونانی ګړنه ده،چې د یوې لاري،روش په واسطه دیوه کار تر سره کول ،او له هغي طريقي څخه پيروي کولو ته وايي.دهمدي لارو چارو په واسطه علم،پوهه او معلومات په مختلفو ډولونو،میتودونو سره انتقال موندلی شی، چی ورته میتودونه یا تدریس اصول وایه شي.

یا میتود د تدریس هغه لارو او طریقو ته وایي چی سړی هدف ته رسوي. په تدریس کې له طرز څخه هم ګټه اخیستل ګیږی. له ساده مختلفو روشونو او لارو څخه ګټې اخیستنې ته طرز وایي. طرز د تدریس په لړ کې ضمنی فعالیتونه وی.

میتودولوژی یا د تدریس پوهه د ښونی او روزنی د ماهرینو له نظره یوی ډیوی یا څراغ ته ورته وي چې د هدف په لور لاره رڼا کوي.له نا معلومو موخو څخه سړی ژغوري.

میتودونه په عمومی توګه په دوو برخو ویشل کیږی. په ښوونکي باندي متمرکز میتود او بل هم په(شاګرد محوری) یا نوی میتود.

په نوي میتود کې ، شاګردانو فعالیت زیات او د ښونکي فعالیت یوازې لارښونه کیدای شی.

د تدریس میتودونه خورا زیات دي. دوینا یا لکچر میتود په لوړو زدکړو کې اغزمن وي.

د سوال ، ځواب په میتود کې هرزده کوونکي هڅول کیږی. سوال ځواب د تدیس کولو یو ښه وسیله پیژندل شوی ده. زده کونکی د پوښتنو لاری چاری ښي زده کولای شي.

د مناقشې او مباحثې میتود هم زیاتی ګټی لري، هغه زده کونکی چې برخه نه اخلی ، هڅول کیږی.
ارزیابي پکی ښه ترسره کیږی. مناقشی په مختلفو طرزونو سره کیدای شی.
انکشافی میتود ، دا میتود (د پیداکولو،کشفولو، لارموندلو) ماناوی ښندي. په دی میتود کې شاګردان د یولړ سوالونو او پرابلمونو سره مخامخوي، مقایسه او څرنګوالی پکې ښودل کیږی او معلوماتو ته پکې پراختیا ورکول کیږي.
عملی یا نمایشی میتود، د کتنې (مشاهدی) په بڼه ترسره کیږي. په دی میتود سره زده کونکی په عملی یا نمایشي بڼه ویني او خصوصاً ماشومان چې په ویلو او اوریدلو سره ځان هدف ته رسوي.
ماهرین وایی چې اوریدل هیرول دي ، مګر په عملي توګه یوڅه ترسره کول زده کول او پوهیدل دي.
دغه میتود د چمتوالي پړاو، د تشریح او توضیح پړاو، د نمایش یا ښودلو پړاو، د ازمایښت یا ازمویلو پړاو ترسره کوی. بل هم د تمرین او تکرار میتود دی ، دغه هم ځانته ګټی لري.
لمړی د حفظولو تمرین ، استنباطي تمرین-مرور یا مخ کتنه-عملي د کړنې تمرین ښونکی ترسره کوي.د دې بڼې په اړونده جدولونو کې کتلی شو.
په فعاله یا ښکاره زده کړه کې د ښوونکي او زده کوونکی دندې باید په پام کې ونیول شي.
زده کوونکي په خپل درسي فعالیت کې برخمن کوی. دزده کړي یا د یادولو تجربوته پراختیا ورکوي.
له ګډ ځواک او فعالیت څخه پکې ګټه اخلی، له استدلال څخه کار اخلی.
شاګرد محوری ګټوری ځانګړنی لري، په شاګرد محوری کې د ښونکی رول په ټولګی یا صنف کې ښونکي د شرایطو برابرونکي او لارښود وي.

په ښکارنده یا فعال روش کې شاګردان تل خوځند یا متحرک وي. له ځان سره خبرې، له نورو سره خبرې، تجربه، کتنه (مشاهده) او بالاخره دانجامولو یا تر سره کولو تجربه ترسره کوي.هر یوه تحربه د زده کړې په بهیر اغیزه کوی او ښه زده کړه تر سره کیږي.د تدریس هر روش ځانته خپل ارزښت لري هغه باید په پام کې وینول شی.

ولی ژبه زده کووٍ؟ ددی لپاره چې ژبه د ټولو انسانانو تر منځ تجربې شریکوي. همدا ژبه د انسانانو تر منځ اړیکې ټینګوي، د پوهې او علم انتقال ښه وسیله ژبه ده. ژبه د انسانانو ذهنی وده او پیاوړتیا رامنځه ته کوي. د ژبو په لړکې پښتو ژبه هم د پوهولواو راپوهولو وسیله ده. اړتیا شته چې هغه په شفاهی او تحریري ډول زده کړای شي.

# د لومړي څپرکي پوښتنې

۱. میتود د کومې ژبې اصطلاح ده تعریف یې کړئ.
۲. د تدریس په وخت کې باید یو ښوونکي کومې وړتیاوې ولري؟ فقط دري اصله یې بیان کړئ.
۳. د څو میتودونو یوازې نومونه واخلئ.
۴. د شاګرد محوری او معلم محوری میتود سره څه توپیرونه لري؟ پرتله یې کړئ.
۵. د لکچر د میتود پړاوونه په ګوته کړئ.
۶. د سوال ځواب د میتود پنځه ښیګنې په ګوته کړئ.
۷. د مناقشې یا مباحثې د میتود ګټې په ترتیب سره وښیاست.
۸. د نمایشي یا نندار یز میتود د پړاونو نومونه واخلئ.
۹. تمرین میتود کوم ډولونه لري یوازې نومونه یې واخلئ.
۱۰. د شاګرد محوری د زده کړې ځانګړنې کومي دي واضیح یې کړئ.
۱۱. ښکارنده روش څه ته وایي په اړه یې معلومات ورکړئ.
۱۲. د تدریس د روش ځانګړنې بیان کړئ.
۱۳. د عامو میتودونو تر څنګ (...) میتودونو ته هم اړتیا وي؟
۱۴. ژبه د څه لپاره زده کوو؟
۱۵. له ځانه د لیکلو د مهارت په وده کې کوم فعالیتونه د پاملرنې وړ یا ګټور دي؟
۱۶. د ژبې د تدریس په مهال کې باید کوم مهم ټکي او د ژبې کومې برخې په پام کې نیول کیږي لکه: بنسټیز مهارتونه...
۱۷. په ژبه کې (لغتونه) (نثر...) - (...) ... ټولو برخو ته پاملرنه باید وشي؟
۱۸. د پښتو ژبې په تدریس کې (۳-۵) ګڼه موخې تشریح کړئ؟
۱۹. د ژبې د تدریس په بهیر کې د څلورو مهارتونو نومونه واخلئ او ګډ بحث پرې وکړئ.
۲۰. د ژبې په تدریس کې په (۴) ګڼه هدف باندې خپل بحث ته یو څه انکشاف ورکړئ.

# دویم څپرکی

## د ژبې د زده کړې څلور مهارتونه

**پیلیزه:**

- په دې څپرکي کې د ژبې د زده کړې څلور مهارتونه ښودل شوي دي. لومړی د اوریدلو په مهارت بحث ترسره شوی، د یو ښه اوریدونکي ځانګړنې یا خواص تشریح شوي او بیا د اوریدلو د مهارت اړین فعالیتونه او ورپسې په ترتیب سره د غوږ د نه نیولو لاملونه تشریح کیږي، چې ښوونکي او زده کوونکي په دې وپوهیږي، چې د غوږ د نه نیولو علتونه څه شي دي. د پورتنیو موضوعاتو د تشریح او توضیح په لړ کې به موخې ترلاسه شي.
- هغه ټکي چې د اوریدلو یا غوږ نیولو په مهارت کې مرسته کوي واضیح شوي دي، ښوونکي به وړ، یا لازمه ګټه ترې واخلي.
- د ژبې د زده کړې دویم مهارت (خبرې کول یا غږیدل) په لازمه اندازه تشریح شوې، چې لوستونکي به ترې نه یو څه معلومات د تدریس په برخه کې خپل کړي. خبرې کول د اوریدلو یا غوږ نیولو نه شلیدونکې برخه ده.
- د خبرو کولو هدفونه په ترتیب سره بیانیږي. سمه لوستنه به زده کړې، سم تلفظ او مناسبې جملې به په خپل ځای وکارولی شي. زده کوونکو ته به د خبروکولو جرّت ورکړل شي او شرایط ورته ښوونکي برابر وي.
- د یو ښه ښوونکي صفتونه به په تفصیل سره ولوستل شي. د خبروکولو د مهارت دودې په اړه معلومات وړاندې کیږي.

- د خبروکولو لپاره ځو لارې په ګوته شوي دي. ورځینۍ محاورې او د هغو ګټې بیان شوي دي!

## لومړی د اوریدلو مهارت:

اوریدل یا غوږ نیول د ژبې له څلورو مهارتونو څخه ګڼل کیږي، د هر مهارت په حاصلولو کې باید لومړی یو داسې سمه فضا شتون ولري، چې د اړوند مهارت په ترسره کولو یا حاصلولو کې مرسته وکولای شي او د زده کوونکو مینه او علاقمندي خپله کړای شي. د ژبې په زده کولو یا حاصلولو کې دغه مهارتونه هغه وخت ښه پیاوړي کیږي، چې اوریدل، لیدل، لیکل او لوستل سره په خپل وار او ځای کې تمرین کړل شي. دغه مهارتونه یو پر بل باندې اغیزې لري. اوریدل، بیانول، لیکل او لوستل د فکري ودې لامل ګرځي.
د ژبې په زده کړه او تدریس کې لومړی شرط اوریدل دي. ماشومان لومړی غوږ نیسي. د غږونو سره آشنا کیږي. د آوازونو په وړاندې عکس العمل ښیي. وروسته ماشوم هڅه کوي چې ورته آوازونه ترسره کړي. د اوریدو اصلي موخه تل پوهیدل وي. اوریدل د مقابل لوري د معلوماتو د درک لپاره په ځیرتیا سره پاملرنه او توجه کولو ته وایه شي. اوریدل یو د پوهولو او راپوهولو له مهارتونو څخه اړین خبر ګڼل کیږي. که چیرې شاګردان په یوه سمه فضا کې دغه مهارت په دقت ترسره نه کړي، نو د افهام او تفهیم چارې په اغیزمنه توګه نه شي ترسره کیدلی. اوریدل د مفاهمې کولو یو بنسټیزه برخه جوړوي، چې ښه پوهیده رامنځته کوي. که دغه برخه نمیګړې وي نو اوریدل به بشپړ نه شي. په پوهولو او راپوهولو کې دغه لاندې درې اړین عامله شتون لري.

وسیله

ویونکي اوریدونکي 

ویونکي خپلې څرګندونې او معلومات د وسیلې (ژبې) په وسیله بل ته اوروي. اوریدونکي یې اوري او درک کوي یې، اوریدونکي مطالب هغه وخت بشپړ

اخیستلی شئ او پری پوهیدلی شي چې د لاندې ښو ځانګړنو، او خواصو درلودونکي وي.

## د یوه ښه اوریدونکي خواص:

*لومړی:* ښه اوریدونکی د اړوند مطلب له اوریدو سره مینه او علاقه ښیي.
*دویم:* یو ښه اوریدونکی (پوهیدونکی) فکرونه څاري.
*دریم:* یوښه اوریدونکی یا غوږ نیونکی دخپلې پوهې سره سم معقولې پوښتنې مطرح کوي.
*څلورم:* یو ښه اوریدونکی دغوږ نیولو په لړکې مهم له ټکي ځان سره یاداشت کوي.
*پنځم:* یو ښه اوریدونکی د بیان کوونکي سره د سترګو اړیکي ساتي، چې دواړه لور یه اغیزمن کیدای شي.
*شپږم:* یو ښه اوریدونکی د ټاکلې موضوع په اړه ډیرې څرګندونې او شواهد غواړي.
*اووم:* یو ښه اوریدونکی یا غوږ نیونکی د ویونکي وینا، خبرې نه قطع کوي په پرله پسې توګه اوریدو ته لیواله وي.
*اتم:* په غیرې لفظي چینل یا حرکاتو سره د ویونکي وینا (خبرې) منل او تائیدول.
*نهم:* ښه اوریدونکی د اوریدل شوو مطالبو په پایله کې خپله ارزونه کوي.
*لسم:* ښه اوریدونکی تل خپل وخت او د نورو وخت ته چې ضایع نه شي پاملرنه کوي.
همدارنګه لاندې ټکي زموږ سره د اوریدلو او غوږ نیولو په مهارت کې مرسته کولای شي.

- هغه مطالب موږ باید ووایو چې د اوریدلو ارزښت ولري.
- اړونده یا ټاکلې موضوع د زده کوونکو لپاره په زړه پورې وي.
- اوریدونکی ته باید د غوږ نیولو موخه او هدف څرګند کړل شي لکه: د یوې کیسې له اوریدو څه زده کوو؟
- داسې خیزونه او شیان باید موږ اوریدونکو شاګردانو، ماشومانو ته ووایو چې د پوهیدلو لامل شي.
- اوریدونکو ته داسې کلمات او مفاهیم واورول شي، چې د هغوی د پوهې او سویې څخه لوړ نه وي.
- دغوږ نیولو یا اوریدلو لپاره مناسبه فضاء او چاپېریال رامنځته کول.

## د اوریدلو د مهارت دودې لپاره لاندې ټکي او فعالیتونه اړین دي:

- ښوونکی د یوی کیسې یو تاریخي مطلب، د کتاب یا مجلی څخه د یو متن په اورولو سره د زده کوونکو د اوریدو مهارت ته وده ورکوي.
- زده کوونکو ته د یو متن مفهوم په ساده توګه بیانوي، وروسته د ښوونکي څخه هماغه مطلب چی شاګردانو اوریدلی وي، په هغو بیا بیا تکراروي. ټول زده کوونکي د ښوونکي وینا ته په ځیر سره غوږ نیسي.
- د مهمو خبرونو یا نورو خبري پیښو اوریدل له تلویزون، راډیو څخه، هغه بیا په ټولګي کې نورو ټولګیوالو ته ویل.
- د ریکارډ شوی کیسې د کلمو او نورو ګړنو اوریدل په ټولګي کې او بیا له هغې وروسته زده کوونکي چې البته په ځیرتیا سره یې اوریدلي وي، ښوونکی د هغو معني پوښتې او اساسي مفهوم یې په خپله ژبه بیانوي.
- ووایه څه دې اوریدلي دي؟

د يوې (لوبې) په ډول يو مطلب يو تن ته اوريدل کيږي. هغه يې وايي او دريم تن يې څو تنو نورو ته هغه مطلب کټ مټ وايي. همدا ډول تر پايه دوام مومي؛ کله چې وروستيو ګډونکوونکو ته مطلب ويل کيږي، ګورو چې څومره توپير پکې رامنځته کيږي.

- دوه کسيزه ديالوګ (خبرې- بحث) ته غوږ نيول او بيا وروسته هر تن په خپله ژبه په ټولګي کې هغه بيانول. د سارې په توګه: يو زده کوونکی يو مطلب وايي، نور ورته په دقت سره غوږ نيسي، وروسته بيا ښوونکی د اوريدل شوي مطلب په اړه پوښتنې کوي. دلته د زده کوونکو د اخيستلو او غوږ نيولو کچه معلوميږي،
- ښوونکی دې په داسې ځای کې ودريږي، چې ټول زده کوونکي يې غږ واوريدلی شي او د هغه حرکات او سکنات په خپلو سترګو وګوري.
- داسې تمرينونه په زده کوونکو ترسره شي، چې لومړی يې واوري او که ممکن وي په خپلو سترګو يې ووينې، بيا دې هر زده کوونکی ځواب ورکولو ته اړ کړای شي، چې بې برخې او بې تفاوته يا ويده پاتې نه شي.

## د غوږ د نه نيولو لاملونه (علتونه):

*لومړی:* شاګرد د ښوونکي په ژبه او يا هم په هغه ګړدود چې ښوونکی پرې خبرې کوي سم نه پوهيږي.

*دويم:* د ټولګي د شرايطو او فضا د ناسموالي له کبله اوريدونکی غوږ نه نيسي، ځکه چې هغه سم غږ نه اوري.

*دريم:* د ښوونکي اواز په مناسب ډول (کښته، لوړ) نه وي او جملې يې ورته مفهوم نه لري.

*څلورم:* ښوونکی داسې ژبه او مفاهیم کاروي، چې اوریدونکي ته ساده او پوهیدونکي نه وي.

*پنځم:* خبرې ژر ژر او پرله پسې وي، زده کوونکي هغه په لږ زماني واټن کې نه شي اخیستلای او یا تحلیل کولای.

*شپږم:* له موضوع سره د اوریدونکي یا زده کوونکي مینه او علاقه نه درلودل د نه غوږ نیولو سبب کیدای شي.

*اووم:* کله بیا د زده کوونکو پاملرنه بشپړه نه وي راګرځول شوې، هغه په یوه بله موضوع باندې فکر کوي، چې د ښوونکي وینا ته یې غوږ نه وي نیولی.

*اتم:* د اوریدونکو یا زده کوونکو لپاره د موضوع تکرار چې هغه اوریدل شوی وي. د نه غوږ نیولو لامل کیدای شي.

*نهم:* کیدای شي د ځینو نظریاتو او عقایدو د اختلاف له کبله زده کوونکي، اوریدونکي د غوږ نیولو څخه ډډه وکړي.

*لسم:* کله بیا د ښوونکي د افادې طرز نیمګړی وي، شاګردانوته د ټاکلې موضوع موخه په ښه توګه نه شي څرګندولی، په دې لړ کې اوردونکی یا زده کوونکی د موضوع له اوریدو سره چندان علاقه او مینه نه ښیي، او د ښوونکي خبرو ته غوږ نه نیسي.

*یولسم:* د موضوع مبتذل والی، د وړ میتود نه کارونه او هم د شاګرد د روحی حالت نه درک کول او په خپله د ښوونکي سلوک، طرز او برخورد چې عیار شوی نه وي، د نه غوږ نیولو لامل کیدای شي.

## د ژبې دويم مهارت خبرې کول يا غږيدل

خبرې کول د اوريدلو او غوږ نيولو سره نه شليدونکې اړيکې لري. څرنگه چې ژبه يوه ټولنيزه کسبی پديده ده، نو خبرې کول د ژبې له مهمو څانگړنو څخه گڼل کيږي. همدا ډول له بله پلوه ژبه بيولوژيکي پديده هم ده، چې نورې دندې هم ترسره کوي. هر څومره چې يو ماشوم وده کوي، ورسره يې په هماغه کچه د زده کړې ځواک او استعداد هم پراختيا او پياوړتيا مومي.

په لومړي سر کې يو ماشوم څه ډول ژبه زده کوي؟

په دې کې هيڅ شک نشته، چې ماشوم لومړی د خپلې مور د حرکاتو، اوازونو په وړاندې عکس العملونه ښيې له هغې څخه په ډيره ابتدايي بڼه اوازونه تقليدوي.

لومړی يو حرفيز يا يو هجايي کلمات او گډوډ اوازونه، له خولې څخه راوباسي. بيا وروسته دوه توريز او په همدې توگه د کلماتو نور اوږده جوړښتونه او کلمې د خولې د تلفظ او غړونو په ډول تکرار وي او هغه د مطلوبونو، شکلونو د افاده کولو لامل (سبب) گرځي.

يا په بله وينا په تدريجې ډول د آوازونو او څيزونو يا شيانو تر منځ اړيکې پيژني.

د تجربو له مخې لومړنۍ زده کړې تل ډيرې په ورو او بطي بڼه ترسره کيږي.

د عمر په مختلفو پړاوونو کې دغه زده کړې بيا فعاله بڼه خپلوي.

زده کوونکي لومړی د خبروکولو هغه طبعي حالت ته چې په چاپيريال کې ورسره مخامخ وي له عادي او معمولي خبرو کولو څخه راپيل کوي. د مور، پلار، ملگرو او د وستانو سره خبرې کوي.

تر ځلور پنځه کلونو پورې له خپل چاپیریال (مور، پلار، کورنی غړو) څخه ځینې کلمې او لغتونه او جملې په نسبتاً بشپړه بڼه زده کوي. کله چې بیا د ښوونځي او مکتب دورې ته ورشاملیږی، نو بیا ښوونکی ور ته نیمګړي تلفظونه او د کلمو بڼې او توري ورښیي، خبرې کولای شي، مګر نیمګړتیا او د ژبې بندیدل او ځینې نورې ستونزې لکه جرأت نه درلودل د محیط نابلدتیا په خپله په خبرو کولو باندې مستقیم اغیز درلودلی شي، په خبرو کولو او زده کړه کې د استعدادونو توپیر او د ښوونکو رول یو له بله سره توپیر لري.

## د خبرو کولو د مهارت موخې (هدفونه):

۱. خبرې کوونکی د خبروکولو په واسطه خپله اړتیا، نظر او هیلې څرګندوي.
۲. ماشومان د خبرو په وسیله خپل فکر او درک شوې پدیدې بیانوي.
۳. له خپلې پوهې سره سم په ټولنیزو بحثونو کې ونډه اخلي.
۴. کلمې سم تلفظ او مناسبې جملې او ګړنې په خپل ځای وکارول شي او بیان یې کړلی شي.
۵. سمه لوستنه زده کړي.
۶. د نظم او نثر د لوستلو په ډول وپوهیږي، چې هر یو یې څرنګه ویل کیږي.
۷. ښوونکی باید تل په ټولګي کې داسې فعالیتونه او وړ میتودونه وکاروي، چې زده کوونکي خبرو کولو ته چمتو شي. زده کوونکي په وار سره خبرو کولو ته اړ کړي. چې یادو شوو هدفونو ته پراختیا ورکړای شي. کیدای شي ښوونکی د مختلفو عکسونو او منظرو په ښودلو سره د زده کوونکو سویه لوړه کړي او هغوی په خبرو راولي.

یا داسې کیسې ورته په ټولګی کې بیان کړي، چې هغوی پرې بحث وکړي او ښوونکی د کړې کیسې په اړه ورځخه یو لړ پوښتنې وکړي، د خبرو لړۍ په وار سره جاري وساتي. ټولو ماشومانو ته یکې مساوي ونډه ورکړي. هغه زده

کوونکي چې په خبرو اترو کې ونډه نه اخلي هغوی تر نورو لا ډېر وهڅوي، چې په خپله خوښه خبرې وکړي. په ټولګي کې ځينې کيسې په خپله ژبه بيان کړي.

شاګردانو ته مختلف فعاليتونه، درسي تمرينونه ورکړي. کوښښ دې وکړي چې شاګردان جرّت پيدا کړي او خپله مباحثه، سوال ځواب ته اماده شي. زده کوونکي د ويرې او ډار احساس و نه کړي. په ډېرې مينې او شفقت سره له هغوی سره چلند وکړي.

تر څو زده کوونکي خپلې ستونزې د يوه مهربانه دوست او ملګري په ډول له هغه سره مطرح کړي.

چې په پايله کې د خبرو کولو موخې څرګندې او د خبرو کولو طرز ښه او په زړه پورې افاده کول، زده کوونکي ته اسانه شي. هغه زده کوونکي چې د کمي او کهترۍ احساس کوي او ځان له نورو څخه کښته احساسوي او تل شرميږي، ښوونکی بايد هغه ته د خبرو کولو شرايط برابر او د هغه دغه ستونزې ورحل او جدي پاملرنه ورته وکړي، چې يو سالم انسان ټولنی ته تربيه کړای شي.

## د يو ښه ويونکي يا خبرې کوونکي صفتونه:

۱. د يو ښه خبرې کوونکي لومړی صفت دادی، چې خبرې په حوصله مندۍ، نرمۍ او داسې طريقې سره وکړي، چې د اوريدونکو پاملرنه ځانته ور واړ وي.

۲. په اړوندې موضوع خپلې خبرې متمرکزې کړي، له حاشيې او څرمه (فرعي) خبرو څخه چې اړتيا يې نه وي ډډه وکړای شي.

۳. د اوريدونکو د پوهې سطح په پام کې ونيول شي.

۴. د موضوع د ښې روښانتيا او توضيح لپاره کره مثالونه وړاندې کړئ.

۵. د موضوع لړۍ (تسلسل) په منطقي ډول په نظر کې ونيسئ.

۶. د تشریح او وینا په وخت کې پیچلي مفاهیم په ساده ژبه وویل شي، هغه چې باید زده کړل شي.
۷. داسې ګړنې (اصطلاح) ونه کاروي، چې د مانا درک ستونزمن او د پوهیدنې وړ ونه ګرځي.
۸. اوریدونکو ته د پوښتنې کولو وخت او اجازه ورکړل شي.
۹. خبرې کوونکي باید د اوریدونکو سره که چیري ممکنه وي د سترګو تماس ولري.
۱۰. د اوریدونکي باور او علاقه جلب کړای شي.
۱۱. بل ښه صفت هغه دی، چې ښوونکی د خبرو په لړ کې د لاس، سترګو او ځینې نور حرکات چې په افاده کولو کې اغیزمن وي اجراّ کړي.

## د خبرو کولو د مهارت دودې لپاره باید لاندې فعالیتونه ترسره شي:

۱. د ساري په توګه زده کوونکو ته وایو، چې یوه دقیقه د خپلې خوښې موضوع په اړه خبرې وکړئ.
۲. د نن ورځ هغه پیښې، چې تاسې د هغو په اړه اوریدلي، لیدلي وي یو څه ووایي!
۳. د ښوونځي په لاره مو د تګ او راتګ په اړه معلومات نورو ته څرګند کړئ.
۴. د لاندې کلمو ژر، ژر تکرار، ویل چې د ژبې په رواني حالت او تیزوالي کې اغیزمن کیدای شي:

د ساري په توګه:

- تور تیل په توره تیږه تول توی شول.
- څه چې ژر ژر ځو، چې هغه راځي.
- لس دهکیپکه، یو دهکیپک... او داسې نورې ورته کلمې او جملې تکرارول چې د ژبې په وده کې رول لري.

يا دا لاندې فعالیتونه:

- زده کوونکي د خپلې کورنۍ په اړه معلومات ورکوي او هغه نورو ته وړپيژني.
- د راټلونکي په اړه له زده کوونکي څخه معلومات غوښتل، چې غواړي په آینده کې په کومه څانگه کې تحصیل کوئ؟ خبرې کول ترسره کړي.
- د ورځنيو پيښو او مسايلو په اړه معلومات ورکول او خبرې کول، چې نورو ته هم په زړه پورې او د هڅونې وړ وي.
- لومړی دې دغه خبرې کول له ساده پوښتنو څخه پیل کړل شي. په هغه څه باندې دې خبرې وکړي، چې د زده کوونکو ورسره لیولتیا وي مثلاً: د سپورتي لوبو په هکله خبرې کول، د پلار، مور، ملگرو، دوستانو د خپل چاپیریال په اړه، ځينې عکسونه او منظرې یو بل ته ورپيژندل، د سفر او خپلو ورځينو کارونو او کړنو په باب خبرې اترې کول، نه داسې چې محدود زده کوونکي تل په دې فعالیت کې ونډه ولري.

د درسونو لنډ مطلب بیانول، په مختلفو جملو او عبارتونو سره.

- د مختلفو نثري لنډو ټوټو لوستل او اورول، په وار سره، شعري مقابلې او فعالیت د ټولگیوالو تر منځ له گټې څخه خالي نه وي.

## د خبروکولو لپاره څو لارې:

١. په ورځينو خبرو اترو یا محاورې کې تل برخه اخيستنه یا د تیلیفون کارونه او په هغه کې خبرې کول.

٢. اخبار ویل او د راپورونو جوړول او وړاندی کول.

۳. د اعلانونو ترتیبول، ویل، راډیویي خبر، تمثیلي پارچې ښودل او توضیح کول.

۴. داستان لیکنه، ویل او ځینې نورې ټولنیزې پیښې بیانول، او هم ښوونکی د زده کوونکو د علاقې وړ څیزونه، چې د هغوی د پوهې له کچې سره برابر وي زده کوونکو ته چمتو کوي او ګډ فعالیت زمینه ورته برابر وي.

**د ساري په توګه د تیلیفون کارونه:**

د ژر خبر رسولو یا پیغام رسولو لپاره تر ټولو ښه وسیله چې انسانان  ترې د مثبتو کارونو لپاره ګټه اخلي، هغه د تیلیفون کارونه ده. د تیلیفون غلط استعمال له انساني ارزښتونو څخه نه ګڼل کیږي. ښوونکی کولای شي زده کوونکي د تیلیفون په استعمال او د خبروکولو په داسې طریقه پوه کړي، چې انساني ښه سلوک او ارزښتونه ولري.

ښوونکی په ټولګی کې دوه تنه سره یو څه لرې دروي او هغوی ته د تیلیفون خبرو کولو مناسبې لارې په ژوندۍ او ننداریزه توګه ورښیي:

ښوونکی: د هغوی عملي لارښوونه کوي: مثلاً: د ګوشي یا غوږۍ په اخیستلو سره تر (بلی! سلام) ویلو وروسته سم دستي مقابل لوري ته ځان ورپیژني او هم مقابل لوری ځان معرفي کوي او بیا له هغه څخه د نوم او ځان پوښتنه کوي. ښې مناسبې جملې دې وکاروي، د خبروکولو اداب دې له پامه نه غورځوي. د مقابل لورې خبرو ته دې په وار سره غوږ ونیسي. اخیستل شوی پیغام دې په غور سره واخلی او هغه که اړتیاوي نوروته په هغه شان او پوره امانتدارۍ سره ورسوي په تیلیفون کې د وخت په پام کې نیول او په وار سره خبرې ترسره کول مهم ټکی ګڼل کیږي. ښوونکی باید زده کوونکي ورته متوجه کړي، چې دغه ټکي په پام کې ونیسي. د تیلیفون کارول او د هغو اداب ښودل او د وخت مراعات کول د خبرو په مهال زده کوونکو ته اړین او د یادونی وړ بریښي. زده

کوونکي کولای شي، چې د پورته ټکو په مراعات کولو سره د خبرو کولو په وخت کې هغه ښه خویونه او کرکټر خپل کړي.

**راپورونه ترتیبول او د هغو وړاندې کول:**

په راپور لیکنه او ګذارش کې باید لاندې ټکي په پام کې ونیول شي، ګذارش په ټولیزه توګه د یو ټولګي، جمعیت، یوکار، یوې پیښې او خبرتیا په مناسبت د یو کس یا څو تنو له خوا جوړیږي.
راپور ترتیبول او وړاندې کول به تل هغه موضوع وي، چې د ترتیبوونکو او اوریدونکو په ګټه وي. د هغو هدفونو لپاره راپور ترتیبیږي، چې له وړاندې هغه اړونده موضوع د اوریدونکو لیدونکو ترمنځ د بحث او څیړنې وړ ګرځیدلې وي.
راپورونه کیدای شي د موضوع سره سم نومونې خپلې کړي مثلاً: اقتصادي راپور یا خبر، سیاسي او اطلاعاتي خبرتیاوې یا نور اړخونه یا جنبې هم لرلی شي. د زده کوونکو لپاره په ځانګړې توګه خبرې ګذارشونه په زړه پورې وي، لکه، د فلمونو، سفر، رنګونو، مهارتونو او سپورتي لوبو، منظرو، عکسونو او داسې نورو څیزونو په هکله راپورونه، چې د زده کوونکو او ځوانانو له عمر سره یو منطقي تناسب ولري، ورته په زړه پورې وي.
د راپورونو په وړاندې، د زده کوونکو عکس العملونه یو له بله سره توپیر لري.
هر یو د خپلې پوهې او عمر په اندازه د موضوع په رابطه فکر کولای شي او په هغه فکر او ځواکمنی سره ګذارش جوړوي.
ګذارش کیدلی شي په شفاهي بڼه هم وړاندې کړل شي، چې د خبرو په منظم والي او تیزوالي اغیزې لري.
د زده کوونکو د فکر په پراختیا، ښه ویلو او اداکولو په برخه کې مرسته کولای شي.

شفاهي گذارشونه زده کوونکي سمو او گټورو کارونو، د ښو الفاظو کارونې، د اصطلاحاتو پوهیدنې او داسې نورو مثبتو کارونو ته هڅولي شي.

**په شفاهي ډول د کیسو او داستانونو ویل:**

د دې مهارت د پیاوړتیا لپاره د داستان ویل او لیکل ډیر ګټور دي.

ښوونکي د یو سوژې یا مضمون په ویلو سره زده کوونکي ورته عمل او داستان ویلو ته چې په کور کلي او باندې کې یې دغه ډول پیښې لیدلې او یا تجربه کړي وي، په خپله ژبه یې نوروته وایي. اوریدونکي ورڅخه برداشت کوي او فکر کوي، چې زه هم باید په دې ډول داستان یا کیسه ووایم. هغه کیسې او داســتانونه چې زده کوونکي یې لیکي یې او نکل یې کوي. د هغوی په فکر، ذوق او شخصي تجربو پورې اړه لري. د لیکوونکي تحلیل او تصور په هغه کې ښکارنده رول لوبوي. دغه ډول کیسې زده کوونکو ته نوي او په زړه پورې وي.

دغه کیسې او داستان ویل باید د ښوونکي له خوا د اسې رهنمایي شي چې نور زده کوونکي په وار سره دغه ډول لیکنو او لوستنو ته وهڅوي. د لیکنو موضوعات باید داسې پیښې او لوبې وي، چې زده کوونکي ترې په راتلونکي ژوند کې روزنیزې ګټې اوچتې کړي.

یا ښوونکي ورته داسې کیسې او ناول ولولي، چې له اوریدو څخه یې زده کوونکو ته یو مفکوره پیدا او یا هغه داستان او کیسه تحلیل کړي او په خپله یې پیغام او نتیجه نورو زده کوونکو ته ووایي.

ښوونکی کولای شي د لنډو پارچو په لیکلو، ویلو او اورولو سره زده کوونکي داستان لیکلو ته ولمسوي.

د ساري په توګه: د زړې بوډۍ او د پاچا د طوطي کیسه- د پسه او لیوه کیسه، د صلحې په اړه ځنې پارچې او مضامین لیکل چې هنري ارزښت ولري. څکه

چې هنری ژبه او هنري ليکنې د زلمو ډيرې خوښې وي. داستان ډوله ليکنې زده کوونکي بالآخره حقيقي ناول او داستان ليکنې ته هڅوي.
د هنري ليکنو پيغام او پايله دې په حقيقي ژوند کې د ښوونکي په مرسته زده کوونکي وپلټي او هر تن دې خپله مفکوره په دې اړه په خپله خوله نورو ته بيان کړي.
ډير ابتدايي مضامين، نکلونه، ادبي ټوټې دې د زده کوونکو د خاطر او خيالاتو سره سم په هغوی (زده کوونکو) تجربه کړل شي.
د نکل، ناول، کيسې ادبي ژبه، تخيل او نور ادبي لفظي جوړښتونه او موخه د داستان له مهمو ځانګړنو څخه ګڼل کيږي. د کيسې اتلانو، قهرمانانو ته دې پاملرنه وشي، چې هغوی بايد څه ډول ځانګړنې ولري. يو داستاني ليکنه هغه وخت ډيره جالبه او په زړه پورې کيدلی شي، چې د اوريدونکو، لوستونکو ذوق او مينه راوپاروي.
په هر داستان کې چې نوې پيښې، عقيدې او عاطفي مسائل له دودونو سره سم مطرح شوي وي، هغه اوريدونکي خوښوي او ورته جالب يا په زړه پورې وي. داستاني ژبه بايد ساده عام فهمه، پوهيدونکې خوږه، او صيقل شوی وي.
کرکجنې کلمې، لغات او ګړنې بايد پکې ونه کارول شي. لفظي جوړښتونه يې ښکلي، خوندور، جملې يې ادبي او په زړه پورې وي. يو ليکوونکی بايد د لغتونو ذخيره ډيره ولري، ځکه چې د رنګارنګ لغتونو کارونه د داستان ښکلا او رنګينې زياتوي. د داستان پيل او پای بايد اوريدونکي يا لوستونکي ته داسې نوي څه ورکړي چې هغه ورڅخه اغيزمن شي. د کيسې او داستان لپاره مناسبه نومونه، مهمه خبره ده، په غور او ځيرتيا سره بايد ورته سرليک وټاکل شي. ښوونکی کولای شي د خپلو تجربو په رڼا کې زده کوونکو ته د داستان ليکنې لارې چارې ور زده کړي.

په دې برخه کې غيرې رسمي خبرې اترې د زده کوونکو تر منځ کيدلی شي، چې شفاهي بڼه به ولري او له هغو خبرو څخه به يو هدف هم د ګروپونو تر منځ ټاکل شوی وي. په هغه رابطه به موضوعات تشريح کوي او خپل نظريات به له نورو سره د ښوونکي په مرسته او لارښوونې سره شريکوي. دغه ډول خبرې اترې ښوونکي د يوی پوښتنې په لړ کې مطرح کوي، چې همدغه پوښتنه يې د پراختيا او د نظرياتو د ګڼوالي سر چينه ګرځي.

کيدلی شي زده کوونکي د سوال ځواب او ديالوګ په بڼه خپلو خبروته انکشاف ورکړي.

په دودونو، د ملي او بين الملی مسآيلو د هغوی د سويي سره سم په داسې مسآيلو بحث سره وکړي، چې هغو ته جالب وي لکه سوله، بيوزلي، تحصيل د اتلانو په هکله خبرې او نکل کول چې زده کوونکي ور سره مينه لري. د هر يو څخه خوړې، ترخې خاطري پوښتل په دې ډول سره چې ټول زده کوونکي په خبرو اترو کې ونډه واخلي. سپورت او موزيک ته هم پکې برخه ورکړل شي. ددغو فعاليتونو څخه بايد د زده کوونکو مور او پلار هم اګاه کړای شي.

که ممکن وي دغه چمتو شوي درسي مواد او کړنې دې نورو ښونځيو ته هم وروښودل شي.

زده کوونکي کولای شي د ځينو هنري فعاليتونو په لړ کې چې ننداريز وي، ځانګړي کالي او جامې واغوندي او ښلګې دې د ليدونکو لپاره ننداري ته وړاندې شي. پورتنۍ يادونې د زده کوونکو په پوهه او تجربو باندې مثبتې زده کړيزې اغيزې ښندلی شي او په تدريجی توګه د هغوی د پوهې کچه لوړ وي.

**ورځينۍ محاورې:**

په زده کوونکو کې بدلون رامنځته کوي. ورځنۍ محاورې د عادي ژوند او روزګار په لړ کې بې له کوم تکلفه څخه ترسره کيږي. دا خبرې تل له دوستانو،

اشنايانو، ملګرو او عامو وګړو سره د ورځيني ژوند د اړتياوو پوره کولو په منظور او مقصد ترسره کيږي.

د سفرونو، کورنۍ ژوند، نورو اجتماعي مناسباتو کې په عادي توګه له دغه ډول خبرو اترو څخه ګټه اخيستل کيږي. د نباتاتو، حيواناتو او ځينې جغرافياوي سيمو په هکله د دوو تنو يا څو تنو تر منځ خبرې کيږي. ښوونکي ډير په دغه ډول محاورو کې ګډون نه کوي. يوازې د زده کوونکو تر منځ د بحث موضوع او محاورې ته دې ځير وي، چې هغوی ته سمه لارښوونه وشي او له ټاکلې موضوع او بريد څخه بل لور ته ګام اوچت نه کړي... د هغوی محاورو ته دې غوږ وي، چې څه سره وايي او پر کومې موضوع او څيز بحثونه کوي. ماشومان دې غوږ نيولو او خبرو کولو ته په خپل وار سره وهڅوي.

# د دوهم څپرکی لنډیز

ژبه د زده کړې لپاره څلور مهارتونه لري له هغو څخه غوږنیول یا اوریدل دي.
د ژبې په زده کړه او تدریس کې لومړنی شرط اوریدل دي، ماشوم لومړی غوږ نیسی، غږونوسره اشنایي پیدا کوی. د اوازونو په مقابل کې عکس العمل ښیي.
د اوریدلو هدف تل پوهیدل وی. که چیری د اوریدلوچارې په اغیزمنه توګه ترسره نه شي، نو افهام او تفهیم به په ښه ډول تر سره نه شي.
د اوریدونکي او ویونکي تر منځ وسیله (ژبه) وي. ویونکې خپلی څرګندونې او معلومات د وسیلی (ژبې) په واسطه بل (اوریدونکی) ته اوروي.
ښه اوریدونکی، د اړوند مطلب سره علاقه ښیي، فکر کوي، خپلی معقولی پوښتنې مطرح کوی.
مهم ټکی یاداشت کوي. د اوریدونکی سره که ممکن وي د سترګو اړیکی ساتي.
یو ښه اوریدونکي شواهد غواړي، د ویونکي د خبرو سلسله نه قطع کوي. په حرکاتو سره د هغه خبرې رد او یا هم تایدوي. د ښه غوږنیولو لپاره باید ښه چاپریال رامنځته شي، اوریدل معلوماتی وي.
موضوع په زړه پوري او زده کونکي، خبرونکي وي. د اوریدلو د مهارت د ودی لپاره باید مختلف فعالیتونه ترسره شي. د ښونکي، ټولګیوالو له خوا اوریدل، (بحث) خبرې اتري له یو، دوه او یا ډلی له خوا تر سره کول. ښونکي باید په درسی ځای کې ودریږی چې ټول یې ووینې، غږ یې واوري. د غوږ نه نیولو لاملونه باید په پام کې ونیول شي. د ښونکی اواز ،لهجه، مناسب ځای معیاری لهجه کارول-د زده کونکی علاقه مندي جلبول - د عقایدو او نظر اختلاف، د افادې طرز او درسي نور میتودونه په پام کې ولري، چې اوریدونکي موضوع په علاقي سره واوري.

د ژبې دويم مهارت خبرې کول يا غږيدل دي. ژبه يوه ټولنيزه پديده ده، نو خبري کول د ژبې له مهمو ځانګړنو څخه ګڼل کيږي.ژبه يوه بيولوژيکی پديده هم ده چې نورې دندې هم ترسره کوی. په لومړی سر کې يو ماشوم څنګه ژبه زده کوي... ژبه له ماشومتوب څخه بيا د ژوند په مختلفو پړاونو او د عمر په اوږدو کې د ودې او انکشاف مرحلې تيروي. د ژبې د زده کړی لومړنۍ مدرسه د مور غيږ وي، بيا چاپريال. د خبروکولو د مهارت هدفونه بايد په پام کې ونيول شي. د خبرو اړتيا-درک او بحث په پام کې نيول کيږی. د يوه ښه خبري کوونکی صفتونه کوم دي؟ د خبرو کولو د مهارت د ودی له پاره بايد اړوند فعاليتونه ترسره شي. شفاهی کيسی، تکرار، راپورونه او نوری لاری چاری په پام کی ونيول شي.

## دويم څپرکي پوښتنې

۱. د ژبې د زده کړې مهارتونه څو دي؟ يوازې نومونه يې ذکر کړئ.
۲. د يو ښه اوريدونکي څو خواص ووایاست؟
۳. کوم ټکي د اوريدلو يا غوږ نيولو په مهارت کې مرسته کولای شي؟
۴. د غوږ د نه نيولو يو څو لا ملونه بيان کړئ.
۵. ماشوم لومړی د چا د اوازونو په وړاندې عکس العمل ښيي؟
۶. يو ماشوم لومړي څه او کومې کلمې يا توري زده کوي؟
۷. له چا څخه کلمې، لغتونه او جملې زده کوي؟
۸. د خبرو کولو د مهارت هدفونه په ترتيب سره ووایاست؟
۹. هغه زده کوونکي چې په خبرو کې برخه نه اخلي، ښوونکي ته څه کول په کار دي؟
۱۰. د يو ښه ويونکي څو صفتونه په ګوته کړئ؟
۱۱. د خبرو کولو لپاره کومې لارې ښودل شوي دي؟
۱۲. د تيليفون کارونه يا استعمال بايد په څه ډول ترسره شي؟ په وار سره خبرې پرې وکړئ.
۱۳. په شفاهي کيسو او داستانونو کې د ليکوال (...) ښکارنده رول لوبوي؟
۱۴. د يو داستان پيل او پای بايد اوريدونکي، لوستونکي ته څه ورکړي؟ په وار سره بحث پرې وکړئ.

# دریم څپرکی

## دریم: د ژبې د لوستلو مهارت

**پیلیزه:**

- **د ژبې د زده کړې دریم مهارت، لوستل ښودل شوي دي.**

**لوستل په حقیقت کې د ښوونې او روزنې بنسټ جوړوي. دا مهارت د شاګرد د لوستلو وړتیا لوړ وي. په دې مهارت کې کمزورتیا په زده کړه کې نیمګړتیا رامنځته کوي.**

- **د یو ښه لوستونکي ځانګړنې پیژندل کیږي. په لومړنیو زده کړو کې د زده کړې پړاوونه څرګند شوي دي.**
- **د پټې خولې او لوړ اواز د لوستنې ګټې او زیانونه به لوستونکي درک کړای شي. موضوع څنګه باید ولوستل شي؟**
- **د چټکې لوستنې لپاره باید څه فعالیت ترسره شي، ښوونکي به ورسره آشنایي ومومي.**
- **د یوه ښه لوستونکي ځانګړنې به وپیژندل شي.**
- **د لوستلو دودې لپاره لارښوونې، د لوستلو لپاره چمتوالی څرګندیږي.**

**لوستلو ته باید په څه ډول پلان طرح شي؟ په دې اړه ځانګړې څرګندونې شوي دي.**

**کیدای شي چې ښوونکي له خپلو تجربو څخه هم په دې برخه کې ګټه واخلي او زده کوونکو ته په دې اړه نوې تجربې هم د شرایطو په پام کې نیولو سره ور زده کړي .**

## د لوستلو مهارت:

د ژبې په زده کړه او تدریس کې بل مهارت لوستل دي. لوستل په حقیقت کې د ښوونې او روزنې بنسټ جوړ وي. که چیرې یو شاګرد په لوستلو کې لایق او وړتیا ونه لري، هغه نه شي کولای چې د خپلې خوښې مضامین ولولي او یا هغه زده کړای شي. په لوستنه کې کمزورتیا د زده کړې د نیمګړتیا لامل کیدا شي.
ذهن ته د صوتي سمبولونو، انځورونو او نورو نښو په مرسته د مفهومونو لیږدول، هغه په ژبه راوړل او له هغو اوازونو څخه مفهوم اخیستلو ته لوستل وایي.
لوستل په حقیقت کې د خپلواکې زده کړې هغه کونجي (کیلي) ده، چې لوستونکي، زده کوونکي ته په خپلواکه توګه د کتابونو، چاپي آثارو د لوستلو ور، دړه یا دروازه پرانیزي.
پرته له دې مهارت څخه د ښوونیزو او روزنیزو سرچینو څخه په دوامداره توګه ګټه اخیستل ډیر ګران کار دئ. که چیرې په دې مهارت کې لوستونکي او زده کوونکي پیاوړی لاس ونه لري، نو د خپلواکې زده کړې څخه به برخمن نه شي. همدا ډول د زده کوونکو د پوهې هر اړخیزه پراختیا په لوستلو سره پیل کیږي. که چیرې یو لوستونکی په لوستلو کې لایق او ماهر نه وي هغه به مختلف مضامین، لکه ساینس، تاریخ، جغرافیه او نور مضامین په خپلواک ډول څرنګه زده کړای شي؟
کمزوري او ضعیف لوستونکي نه شي کولای، چې په ښوونه او روزنه کې بشپړه برخه واخلي.
لوستل یا قرائت د زده کړې یو مهم فعالیت دی، چې ښوونکي یا زده کوونکي د تدریس په برخه کې د زده کړې په غرض، موضوع یا مضمون په مناسب (ورو، کرار، اوچت، لوړ) اواز سره د کتاب، کاغذ له مخې لولي. موضوع باید په مناسب

ډول د کتاب له مخې ولوستل شي. د تورو، کلمو سم تلفظ او د هغو وتوځي (مخارج) په ځیرتیا سره مراعات کړل شي. په ځانګړي ډول د هغو تورو تلفظ چې سره ورته او نږدې مخرجونه لري په غور سره ولوستل شي. د جملو، کلیمو تر منځ، لارغه (مکث) پیوسته او برابرې لوستنې او د لیک نښو پر بنسټ د کلام سمون او لوستلو ته پاملرنه اړینه ده.

## یو ښه لوستونکی کوم دی؟

هغه لوستونکی یو ښه لوستونکی ګڼل کیږي، چې لاندې څرګندونې په پام کې ونیسي.

- یو ښه لوستونکی هغه دی، چې څه لولي په معنیٰ او مفهوم یې پوهیږي، یوازې د کلمو تلفظ کول د لوستلو مانا او مفهوم نه لري؛ کلمې، ګړنې، جملې او عبارتونه باید ورته مفهوم او افاده شوي وي.
- د لیکوالۍ په ځانګړو نښو او ټکو باندې پوه شي، چې د مطلب او بشپړې مانا، په افادې کې مرسته کولای شي. لکه (؟ ـ . ـ ! ـ ،)... او داسې نوري نښې او علامې.
- یو ښه لوستونکی باید د کتابونو د لنډیز برخه، ګرافونه، او ځنې نور تدریسي مواد وپیژني او هغه تشریح کړای شي.
- ښه لوستونکي د کتاب په ټولو مفرداتو، سرلیکونو، سریزې، مخکنۍ خبرې، لړلیک، پایلې او ځینو نورو تخنیکي اړخونو باندې پوهیږي.
- ښه لوستونکي هغه وي، چې هر متن د خپلو ځانګړنو یا د هغه مضمون د خصوصیاتو په پام کې نیولو سره ولولي.
- په ټولیزه توګه یو ښه لوستونکی باید د لوستلو سره تل مینه ولري.

- په لوستلو کې د تعجبي، ندايې، امري، پوښتنې او نورو حالتونو څرنګوالی اوريدونکي په ښه ډول درک کړای شي. په لوستلو کې د اواز څرنګوالی د مناسبي قيافې نيول، اوريدونکي ډير اغيزمن کوي.

پرته له پورتنيو يادونو څخه دې ښوونکي زده کوونکو ته هغه اغيزمنې طريقې، لارې چارې د لوستلو ور په ګوته کړي، چې د زده کوونکو سره په لوستلو کې ورځ تر بلې مرسته وکړای شي. ۲۶: ۵۰

او د لوستلو ځواک او قوه يې پياوړتيا او پراختيا ومومي. په لوستلو کې زده کوونکي د رنګارنګ افسانو، کيسو، شعرونو او ادبي ټوټو سره مخامخ کيږي. د هغو د پيښو او تجربو سره آشنا کيږي. د اتلانو په ځانګړنو او کرکټرونو وپوهيږي. د هغو د ژوند د کارنامو له مخې د ژوند ارزښت، ښکلاوې او بدرنګې وپيژني.

د بديعی او ادبي اثارو سره مينه پيدا کوي. کولای شي، چې د همدې لوستنو په لړ کې، ټولنيز او بشري ارزښتونه ښه درک کړای شي. د ژوند او طبيعت په اړه ذهنيت ومومي، حتی د پيښو وړاندوينه کولای شي.

## په لومړنيو زده کړو کې د لوستلو پړاوونه:

ښــــوونکي دې زده کوونکـــو تـــه د يـــو شــــمېر اســـانه او ســـاده کتـــابونو د لوستلوسپارښتنه وکړي. هغوی ته دې دنده ورکړل شي، چې ټــاکلي کتابونــه، اخبار، مجلې، اوونيزي او نورې چاپي رسالې ولولي. وروســـته دې بيـــا لوســـتل شوي کتابونه يا ورځپاڼې چې لوستلی يې وي له هغو څخــه مهم ټکي، ځينـــې ســـرليکونه او نور جالب ټکي چې زده کوونکي ته مفهوم وي، په ټـــولګي کـــې نورو ټولګيوالو ته ووايي، په دې ډول به يې د لوستلو قوه پراختيـــا او پياوړتيـــا ومومي.

د دغو ساده کتابونو، مجلو، اخبارونو لوستنه ښوونکی څاري، د غلطيو اصلاح او نمونه ښوونکي په عملي توګه ترسره کوي. د جملو نويو لغتونو تلفظ نور

ګرامري جوړښتونه، د هغو د کارونې ځای او نور ګڼ مفاهیم د ښوونکي تر څارنې لاندې په ټولګي کې تمرین کوي.

د زمان او نوبت په پام کې نیولو سره د زده کوونکو عملي سویه ورځ تر بلې لوړېږي. زده کوونکي فکري تمرکز ته هڅول کیږي.

په لومړنیو زده کړو کې لاندې درې ګونې مرحلې په پام کې نیول کیږي.

**لومړی: د پاملرنې (توجه) او ذوق را بلل:**

په داسې تجربو، پېښو، کیسو، انځورونو او نورو په زړه پورې څیزونو په ویلو، ښکاره کولو دې درس پیل کړی، چې د ټاکلې موضوع سره اړه ولري؛ د زده کوونکو احساسات راوپاروئ. د هغوی جلب توجه، او پاملرنه هغې لور ته ورواړوئ.

**دویم: د پټې خولې لوستل:**

د پټې خولې لوستل په لوړو ټولګیو کې زده کوونکي دې ته هڅوي، چې مفاهیم درک او ستونزې په ښه کړي. په دې ډول لوستنه کې شاګردان د لوستلو لپاره چمتو کیږي، پرته له ویرې او تشویش څخه د متن لوستنه ترسره کولای شي. په سم تلفظ، جمله ویلو او ارتباط ورکولو کې لا د مخه تمرین ورته کیږي. په دې لوستنه کې یوازې د سترګو په حرکاتو، لیدلو او ذهنیي فعالیت سره لوستل ترسره کیږي.

ځنې بیا په ورو ډول شونډې، خوله ورسره خووځوي، چې دغه خوځونه د لوستونکی د ژر خستګی او ستړیا باعث ګرځي. ښه به دا وي، چې یوازې سترګې او ذهن فعالیت ترسره کړي. په ورو یا پټه خوله لوستنه کې اواز تر خولې نه راوځي.

د پټې خولې لوستل زده کوونکي په آینده کې چټکې لوستنې او مطالعې ته اماده کوي.

هغه څه چې ورته مفهوم نه وي، وروسته یې له زده کوونکو او یا ښوونکي څخه پوښتي.
یا یې له ټولګیوالو څخه د مباحثې په لړ کې یادوي. په پټه خوله له متن څخه مفهوم ژر او ښه ترلاسه کیدای شي.
په کتابخانو کې له دې ډول لوستنې څخه اغیزمنه ګټه اخیستل کیږي. د لوړ اواز په نسبت یې تاوان دادی، چې د صحیح او غلط تلفظ توپیر پکې ګرانیږي.
ښوونکي یې نه شي څارلای. ښوونکي په دې ډول لوستنه کې زده کوونکي له متن څخه د پوښتنو ځوابونو موندلو ته هڅوي. لکه د اساسي هدف پیدا کول له متن څخه مطلب موندنه، د اخبارونو لوستل، د جملې توکي (عناصر) او ګرامري توکي په متن کې موندل، د نومونو، ضمیرونو، صفتونو پیدا کول او نورو ته ورپیژندل او داسې یو لړ نور فعالیتونه ترسره کول مهم دي.

**دریم: په لوړ آواز لوستل:**

په لوړ اواز لوستل په لومړیو ټولګیو کې د ډیر اهمیت وړ بلل کیږی. په دې خاطر چې ښوونکي د زده کوونکو تلفظ اوري او هغه اصلاح کوي. صحیح او غلط ورته ښیي. ورسره د لوستلو ډول او طرز هم ورته په ګوته کوي. په لوستلو کې برسیره پر دې چې خپله لوستونکي موضوع لولي، نور زده کوونکي د هغه د ویلو طرز او تلفظ هم اوري. دا لوستل د موضوع د مفهوم د پوهیدو لپاره هم د پاملرنې وړ ګرځي. په لومړي ټولګي کې د زده کوونکي ډیره انرژۍ په لوړ اواز سره په لوستلو مصرفیږې.
په لوړو ټولګیو کې بیا د دې ډول لوستنې اهمیت دومره نه وي؛ حتی یو بل ته مزاحمت خلق کوي.
ښوونکي نه پوهیږي، چې د کوم یوه تلفظ سم او د کوم یوه ناسم دئ. څوک یې لولي؟ د هغه پیژندل یا پیدا کول ورته ګرانیږي. په لوړ اواز سره ویل په لوړو ټولګیو کې ممکن نه وي.

دا ډول فعالیت ښوونکو او زده کوونکو ته مطلوب نه وي. مګر په هغه صورت کې چې زده کوونکو (متن) لوستلی وي، ستونزمن لغتونه یې په خپلو کتابچو کې په نښه کړي یا له کتاب څخه رایستلي وي، نو بیا ښوونکي په خپله په لوړ غږ یا په وار سره په څو تنو زده کوونکو باندې هغه ټاکلی سرلیک لولي، تر څو چې ټول زده کوونکي سم او نا سم تلفظ واوري او سم تلفظ او لوستنه زده کړي. ښوونکی د اوریدل شوي مطلب مانا او مفهوم پوښتي، لغتونه ورته مانا کوي او هغه چې لیکل او تلفظ یې ګران وي، ورته په دړه یا تخته باندې لیکي او سم تلفظ یې پخپله او په نورو زده کوونکو باندې تکرار وي.

## د لوستلو دودي لپاره لارښوونې، د لوستلو لپاره تیارۍ

ښوونکي په ټولګی کې داسې فعالیتونه، پوښتنې او توضیحات د ټاکلې موضوع د چوپې خولې د لوستنې په لړ کې له زده کوونکو څخه په وار سره غواړي، چې له هغو سره په ژر، ژر او تیزه لوستنه او فکر کولو کې مرسته کوي. په وار سره په لوړ غږ د پټې خولې د لوستنې درک شوي مفاهیم اوریدل کیږي. بحث پرې کیږي. په متن کې د یو متل، ګړنې او اساسي مطلب پیدا کول په زده کوونکو کې د ټاکلې موضوع پیژندنه او پوهیدنه او ژر لوستنه رامنځته کوي. د ځینو هغو مفاهیمو پوښتنه ښوونکي مطرح کوي، چې له متن سره اړه لري. په شفاهي ډول یې له زده کوونکو څخه څرګندونې په وار سره اوري- د ژر لوستنو طریقې ښوونکی په عملي لوستنو کې په زده کوونکو باندې پرکټیس کوي. مثلاً د اخبار لوستل- د یو اعلان لوستل او تمرین کول. له یوې ټاکلې موضوع څخه مهم ټکي په نښه کول چې له اصلي موخې څخه څرګندونه کوي. له متن څخه د اساسي ټکو ژر موندنه او د شاګردانو تشویق او هڅونې د لوستنې په وده کې مهم او اغیزمن رول لوبوي.

د لوستلو لپاره لومړی چمتوالی په فزیکی ډول او رواني یا ذهني توګه لازمي شرط ګڼل کیږي.

په فزیکي ډول کتاب باید په مناسب ډول سترګو ته مخامخ وی، او ناسته ورته په سمه توګه وي چې کتاب بشپړ ولیدل شي. پر کتاب ډیر سر کوز یا کښته کول مناسب نه دي. ځکه چې د روغتیا او سمه ناسته په پام کې نیول حتمي خبره ده. له ښي لور څخه و چپ لور ته د سترګو غړول باید زده کړل شي. زده کوونکو ته هغه کیسې ورکړل شي، چې دوی ورسره مینه لري او هغه وربانديې ولوستل شي، د ځینو پوښتنو د مطرح کولو په لړ کې هغوی دې ته اړ کړي، چې

سم ځواب په لږ وخت کې له کیسې څخه ومومي. کیسې اوریدونکو ته په زړه پورې او لیدونکې وي.

په لوستنه کې دې هغه کلمې اصطلاح او جملې په سمه توګه ولوستل شي، چې د موضوع سره تړاو لري او له قراینو څخه دې ګټه پورته کړای شي، ځکه چې د لوستنې په برخه کې په موضوع او اصلی محتوا پوهیدنه، د لوستلو کار اسانوي. په سم تلفظ، سم لوستلو، ژر ژر لوستلو کې د موضوع پوهیدنه اغیزمنه وي. له اصلي مطلب او هدف سره په اړیکه کې لوستنه مناسبه ولوستل شي، چې اوریدونکي پرې وپوهیږي او مطلب ترې واخیستل شي او په مفهوم یې وپوهیږي. د منفي اغیزو رامنځته کوونکی نه شي. ۲۰: ۲۰

## د لوستلو لپاره څنګه پلان طرح شي

دا په ښوونکي پورې اړه لري، چې د لوستلو د مهارت لپاره له کومې طریقې او لارې چارې څخه اغیزمنه استفاده کولای شي.

۱. ښوونکي کولای شي، چې د هغو لغتونو چې هم ریښه وي د زده کوونکو پام ور واړوي او له هغو سره مرسته وکړي. په دې شرط که چیرې ددوی مورنۍ ژبه د کلماتو په ریښو کې د دوهمې ژبې سره ګډون او یووالی ولري، د ژبې په تدریس کې کولای شي، چې عبارت، متضادې کلمې، مترادفې کلمې سره شرح کړي. په دې شرط چې هم ریښه کلمې د یوې کورنۍ څخه وي، توضیحات یې لازمي دي. د ساري په توګه: اړتیا، اړکیدل، اړ شوم - روغ، روغتون، روغتیا، روغوالی او داسې نور... یخ، سوړ، ویاړ، افتخار، مرسته، کمک... او داسې نورې کلمې.

۲. متضادې کلمې یا لغتونه: لکه درنه، سپکه، کرکه، مینه، خپه او خوشحاله، تور او سپین، شپه او ورځ، دوست او دښمن او داسې نورې کلمې چې سره متضادې وي.

**ښوونکي د لويو او کوچنيو کلمو په بيلولو سره هم له زده کوونکو سره مرسته کولای شي:**

**د ساري په توگه: پوه، پوهنه، ناپوه، پوهه او داسې نور.**

**همدارنگه ښوونکي کولای شي، چې د مختاړو او روستاړو په کارولو سره زده کوونکو ته د لوستلو په برخه کې اغيزمنه مرسته وکولای شي. د ساري په ډول: لکه: بې سره، بې عقل، بې کوره، بې کاره، بې پلاره، نابللی او داسې نور د روستاړي بيلگې لکه: روغتون، پوهنتون، روزنتون، کليوالي، ولسوالي او داسې نور.**

**۳. همدا ډول ښوونکي کولاي شي د خپل درسي چاپيريال څخه د زده کوونکو سره د کلماتو مانا د قياس له مخې يا د نورو کلماتو په مرسته له هغو سره کمک وکړي. ښوونکي بايد د زده کوونکو په مورنۍ ژبه وپوهيږي چې په هغه صورت کې ښه مرسته کولای شي، ښوونکي بايد زيار وباسي، چې د تدريس په بهير کې له هر ډول امکاناتو څخه چې زده کوونکو ته گټور وي کار واخلي. په شعوري توگه هغوی ته ځنې کلتوري او دوديز مسايل چې ورته اړتيا وي، په خپله مورنۍ ژبه ورته شرح کړای شي.**

**۴. ښوونکی د زده کوونکو په درک او پوهې په مختلفو لارو ځان باوري کوي او هغه لارې ورته ښيي، چې د لوستلو مهارت ته پراختيا او پرمختيا ور ببښي.**

**۵. ښوونکي په دې لړ کې مختلفې پوښتنې مطرح کوي، چې د هغو په ځوابولو سره د هغه د پوهې کچه لوړيږي او په ژر درک کولو کې ورسره مرسته کيږي.**

**د ساري په توگه ور څخه پوښتي: ايا زلمی افغان دی!؟**

**پوښتنې بايد د استفهام د کلمو په واسطه ترسره کړای شي. لکه: څوک؟، چيرته، ولې، څه، کله، څله، څرنگه او داسې نورې پوښتنېزې کلمې وکارول شي مثلاً: څوک دې وليدل؟ چيرته ځې؟، ولی ځې؟، څه کوې؟ کله راځې؟ ولې فکر کوې؟ څله خپه يې؟ او داسې نور.**

۶. په وروستيو پړاوونوکې دې داسې پوښتنې وکړای شي: (څنګه یا ولې)
قیاسي پوښتنې دې د لوستلو په برخه کې ترسره شي لکه: تاسې څه فکر کوئ؟- تاسې څه کوئ؟ ښوونکي دې داسې سوالونه وکړي، چې زده کوونکي د لوستلو په برخه کې ځوابونه کلمه په کلمه ومومي. ښوونکي د یوې فقرې اصلي موخه او مفکوره له زده کوونکو څخه باید وپوښتي، چې د نوموړي شخص خبرې د بیرې او قهر په حالت کې دي یا هغه وضع او حالت چې دی پکې واقع دی درک کړي. همدا ډول ښوونکی زده کوونکو ته غیرې مرتبې کلمې په جملو، فقرو او عبارتونو کې ورکوي، هغوی یې بیا په ترتیب او له قاعدې اوګرامري اصولو سره سم بیرته تنظیم او جوړوي.
څنګه یو ښوونکی د زده کوونکو لوستنه چټکه او تیزه ولی شي:
*الف:* ښوونکي زده کوونکو ته یو متن ور کوي، چې هغوی یې په ورو یا پټه خوله ولولي، البته وخت د لوستلو ورته ټاکي، په ټاکلي وخت کې ور څخه د هغه محتوا، اصلي ټکي او موخې پوښتي.
*ب:* دغه وخت په تدریجي توګه په بیا بیا لوستنه کې څو چنده ورته لږ وي او هم یې سم تلفظ ته چې ورباندې یې لولي زده کوونکي متوجه کوي.
*ج:* زده کوونکي باید وهڅول شي، چې په ورو یا پټه خوله لوستنه کې د شونډو حرکت د لوستلو په مهال کې کم کړي.
*د:* ښوونکي په یوه ټاکلی موضوع کې د یوي مفکورې، مقصد لپاره درس ورکوي، زده کوونکي باید ضرور په هغه درس کې هغه مفکوره، مقصد د سوالونو په لړ کې چې ښوونکي یې ترې کوي هغه موخه، کلمې او یا مرکزي فکر په ګوته کوي. دغه ډول په پټه خوله او لوړ غږ لوستنه د ویلو او لوستلو په برخه کې مرسته کولای شي.

ښوونکي د ځينو چارتونو او نورو طريقو او امکاناتو په کارولو سره د ښې او ژر لوستنې لارې ښودلای شي. پاملرنه وکړئ د لوستنې د ښوونې په اړه ځينو طريقو او مرحلو ته چې بايد ورڅخه کار واخيستلای شي.

**لومړنۍ مرحله يا طريقه:**

هغه مواد چې دوی زده کړي، يا يې په ياد کړي دي. بايد هم يې ولولی او هم يې ښه تلفظ کړي.

دغه دلوست يا ديالوگ په ډول ترتيب شي او يا دې د يو لړ عملي جملو په ډول صورت ومومي او يا دا چې يوه ساده تمثيلي کيسه چې د ټولگي په شاوخوا کې چې پخوا زده کوونکو ورباندې بحث کړی وي، په داسې حال کې چې تدريس شوي ترکيبي جملې هم پکې ترتيب او تنظيم شوی وي. زده کوونکي ديته اړکړای شي، چې زده کړای شوي څيزونه، نومونه او کلمي پرته له دې چې ورته وگوري د هغو تلفظ په سم ډول وکړای شي. وروسته بيا د هغه مواد د ښوونکي له خوا په لوړ غږ اواز ولوستل شي. په داسې حال کې چې زده کوونکي ورته په ځيرتيا سره وگوري، ښوونکی لوست څاري، وروسته د ښوونکي تر لوستلو زده کوونکي په گډ اواز سره، په همدې طريقي په لوستلو سره پيل کوي. دا هم ممکنه ده، چې وروسته تر دې په عملي توگه له يو بل گروپ څخه په انفرادي ډول هيله وشي چې ورته عمل ترسره کړي.

**دويمه مرحله:**

ښوونکي يا د ژبې يوه ډله ښوونکي په ښوونځي کې د يو لړ اشنا کلمو ډول ډول ترکيبونه په يو چارت کې ترتيبوي.

هغه د يو ديالوگ ياسوال ځواب په ډول زده کوونکو ته ښيي، چې له زده کوونکو سره مرسته وشي. نوی ترتيب شوي مواد ټول آشنا او مروج عناصر يا توکي پکې راغلي وي، چې هغوی يې ولولي.

**درېيمه مرحله:**

زده کوونکي دې د داسې موادو په لوستلو پيل وکړي، چې په هغه کې ځنې نامانوسه (نا اشنا) کلمې او ترکيبونه راوړل شوي وي، چې دا ډول مواد دېوې کميټې له خوا ترتيبېږي. دلته د پام وړ خبره داده، چې په هغه کې به اسانه او ساده متنونه راوړل شوي وي. د زده کوونکو علاقه، د عمر درجه او سويه هم په پام کې نيول شوي وي. تجربو ښودلې ده، که چيرې ديرش (۳۰) اشنا کلمې تدريس شي، نو بايده دي، چې يوه نوي کلمه پکې راوړل شي. په دې عمليه کې يوه طريقه غوره شوې ده، چې د ګرامري لوستلو څخه يوه برخه د عملي کار لپاره وټاکل شي.

**څلورمه مرحله:**

ځنې خلک يو ساده او کلاسيک متن او يا د يوې مجلې څخه د لوستلو يو عبارت ټاکي. ځنې ددې نظر يې او طريقې سره مخامخ وي. هغوی وايي، چې زده کوونکو ته ښه او بهتر ماخذونه، بازار او مارکيټونه، د پيرلو او پلورلو ځايونه کېدای شي. په ځانګړي ډول هغه زده کوونکي چې د وي د اصلي متن په لوستلو لاس بري نه وي، هغوی ته د تدريس لپاره مرتب مثالونه کيدلی شي.

**پنځمه مرحله:**

متحد شوي مواد او د کتابونو ټوله نړۍ بايد د زده کوونکو په مخ خلاصه وي. دا چې پنځمې مرحلې ته زده کوونکي څه وخت رسيږي؟ په دې ډول وايي چې:

ځنې زده کوونکي شايد هيڅکله دې مرحلې ته ونه رسيږي. ځکه چې دوې په خپله مورنۍ ژبه کې هم دې مرحلې ته نه دي رسيدلي. ځينې زده کوونکي دي چې د عالي ښوونځي په کلني پروګرام کې رسيږي.

**څنګه یو ښوونکی د زده کوونکو د لوستلو چټکتیا ته وده ورکولای شي؟**

په دې اړه له مختلفو طریقو او موادو څخه ښوونکي کار اخیستلای شي. ښوونکی کولای شي د لوستلو مهارت دودې لپاره زده کوونکو ته هغه لارې په ګوته کړي، چې د هغوی په اختیار کې وي. مثلاً د اخبارونو دقیق لوستل، ادبي پارچې او نور هغه متون چې زده کوونکي ورسره مینه ولري. ورځپاڼې، مجلې لوستل له هغه څخه مطلب اخیستل او په ټاکلي وخت او زمان کې د هغو له موخو او بیان څخه پوښتنه کول. همدا ډول په یوه متن کې د نوم، فعل، ضمیر، صفت او نورو ګرامري توکو ژر پیدا کول او په نښه کول د تیزې لوستنې سره مرسته کولای شي.

ښوونکي کولاي شي په مختلفو طریقو سره زده کوونکي تیزې لوستنې او مفهوم اخیستنې ته وګماري. کامیاب ښوونکي به هغه وي، چې د چاپیریال په پام کې نیولو سره زده کوونکي چټکې لوستنې ته وهڅوي او په هغو باندې په عملي ډګر کې ډول ډول تمرینونه ترسره کړای شي.

# د دریم څپرکي لنډیز

د ژبې د لوستلو مهارت په تدریس کې بل مهم مهارت لوستل دي. لوستل په حقیقت کې د ښوونې او روزنی بنسټ جوړوی. ذهن ته د صوتی سمبولونو، انځورونو او نورو نښو په مرسته د مفهوم لیږدول، هغه په ژر تلفوظ کول او له هغو اوازونو څخه مفهوم اخیستلو ته لوستل وایی که چیرې لوستونکی په لوستلو کې ماهر نه وي د نورو مضامینو زده کړه هم ورته مشکله وي. په لوستنه کې باید مخرجونه سم ادا شي. د جملو او کلمو لوستنه باید په لازم غږ او ځنډ (مکث) سره تر سره شي.

یو ښه لوستونکي کوم دی؟ یو ښه لوستونکي هغه ګڼل کیږی چې اړوندې لارښوونې په پام کې ونیسیي. څه چې لولي په مانا او مفهوم یې پوه شي. د لیکوالی نښی او ګرامري، نحوي توکي کراعات کړی. په لوکړنیو زده کړو کې د لوستلو پړاونه چې اسانه او ساده کتابونه، د پټې خولی لوستل، په لوړ غږ لوستل-توجه جلبول، ذهنی فعالیتونه تر سره کول.

د سختو کلمو او تلفظونو لیکل پرتوره دړه باندی. د لوستلو د ودې له پاره لار ښوونې، چمنوالی، د ښوونکي له خوا داسې فعالیتونه تر سره کیدل چې ښوونکی په وار سره هغه واوري کتاب او درسي لوازم په یوه داسی خونه کې ایښودل او لوستل چې ټول یې په یو شان ووینې. د لوستلو لپاره باید څنګه پلان طرح شي. مترادف لغتونه، متضادې کلمی ورته واضیح کړي. ښوونکي د خپل چاپیریال څخه ګټور امکانات زده کوونکو ته برابر کړی. مهمه دا ده چې ښوونکی د تدریس په ژبه ښه مسلط وي. قیاسي پوښتني دی په لوستنه کې طرح شي. له استفهام (څنګه،کله،ولې،څوک) څخه دې کار واخلی. متن دې

په شاګردانو تکرار ولولی. ښوونکي د ځینو چارتونو او نورو طریقو او امکاناتو په کارولو سره د ښې او ژر لوستنی لارې ښودلای شي. په ژر لوستنه کې باید هغه پنځه مرحلې ښوونکی وکاروی. څنګه یو ښوونکی د زده کوونکو د لوستلو د تیز ولو یا ژر لوستنې ته وده ورکولای شی؟ ښوونکی شاګردانو ته هغه طریقې او لارې ورښيي چې په اختیار کې یی وی. مثلا: د اخبار، مجلو، ورځ پاڼو لوستنه یا نور هغه متون چی شاګرد ورسره علاقه لری. له لوستنې څخه ژر مطلب اخیستل البته د یوه ټاکلی زمان او وخت په پام کې نیولو سره لنډه دا چې ښوونکي په مختلفو تمرینونو سره شاګردان چټکې لوستني ته رابلای شي.

## د درېم څپرکي پوښتنې

۱. لوستل څه شي ته وايي؟ لوستل د خپلواکې زده کړې (...) بلل کیږي؟
۲. خپلواکه زده کړه څه وخت ترسره کیدلی شي؟ او مناسبه لوستنه به کومه وي؟
۳. یو ښه لوستونکی کومې ځانګړنې لري؟
۴. په لومړنیو زده کړو کې د زده کړې پړاوونه څو دي؟ یوازې نومونه یې واخلئ.
۵. د پټې خولې لوستل په کومو ټولګیو کې ترسره کیږي. او کومې ګټې لري؟
۶. په لوړ اواز لوستل څه ګټې لري او په کومو ټولګیو کې د ارزښت او اهمیت وړ بلل کیږي؟
۷. د لوړ اواز د لوستنې زیانونه بیان کړئ.
۸. یوه موضوع باید د اصلي مطلب او هدف سره په اړیکه کې ځنګه او څه ډول ولوستل شي؟
۹. یو ښوونکی څرنګه د یو زده کوونکي لوستنه چټکولی یا تیزه ولای شي؟
۱۰. په لوستنه کې باید د کومو طریقو او مشخصو مرحلو څخه کار واخیستل شي؟ هر یو تن دې یوه مرحله توضیح او تشریح کړي.
۱۱. د څو آشنا کلمو د راوړلو څخه وروسته باید یوه نوی کلمه وکارول شي.
۱۲. په درېمه مرحله کې کوم موضوعات د لوستلو په اړه بیان شوي دي.
۱۳. په پنځمه مرحله کې د لوستلو په اړه څه ویل شوي؟ یو څه رڼا پرې واچوئ.

# څلورم څپرکی

## د ژبې د زده کړې څلورم مهارت لیکل

پیلیزه:

- د ژبې د زده کړې څلورم مهارت لیکل دي، په دې برخه کې په لیکنې او الفباّ پورې اړوندې مسئلې راوړل شوي دي. حروف څنګه تدریس شي، څه ډول د هغو ارزیابي ترسره او ښوونکي باید خپل حرکات څه ډول تنظیم کړي؟
- د لیک د رسم الخط د لیکلو په خاطر وړاندیزونه، د ژبې د زده کړې طریقې په درې پړاوونو کې واضیح شوی دي.
- د املاء د تدریس او زده کړې په اړه بشپړ معلومات وړاندې کیږي، چې ښوونکي کولای شي له هغو روشونو، او لارو چارو څخه اغیزمنه ګټه واخلي. د لیکلو لپاره څنې مهارتونه چې له پیداګوژیګي پلوه د پاملرنې وړ دي. ښوونکي هغه زده کوي او د هغو له مخې خپل تدریس مخ ته بیایي. د ژبې د ښې زده کړې اصول څرګند شوي دي.
- په عمومي توګه د لیکلو د مهارت لپاره فعالیتونه ښودل شوي دي.
- د املاء د اصلاح کولو، قرائت کولو، د املاء د متن غوره کولو او همدارنګه د کلمو د جوړونې زده کړه ښودل شوې ده.
- د کلمې او جملې جوړونې زده کړه، چې د فعالې لیکنې پیل او جمله جوړونې پیاوړتیا رامنځته کوي. د جملو یا فعالې زده کړې لپاره ډول ډول تمرینونه، تش ځایونه ډکول، او د جملې جوړښت، سمه لیکنه تشریح شوې ده. لنډې جملې او عبارت ته انکشاف ورکول به زده کوونکي زده کړي.

- د لیک په زده کړه کې د املاء اهمیت، املاء لیکنه اساسي بنسټ او یوه ښه انشاء، جوړوي. تل ذهني اوریز، ویز، لیده نیز انځورونه د ښې املاء په مټ ترسیمیږي. د پښتو تورو او لهجوي اختلاف ته ګوته نیول شوې ده.
- د (ی) ګانو بڼې سره له بیلګی توضیح شوي دي، چې په املا کې د اهمیت وړ توري دي.
- انشاء او د هغې د زده کړې طریقې به زده کوونکي، لوستونکي زده او ښوونکي به یې په ښه ډول تدریس وکړای شي.

د یو متن لازمي لارښوونې به په ترتیب سره په پام کې ونیسي او زده کوونکو ته به یې توضیح کړي.

- د ښې انشاء صفتونه کوم چې اړین دي، دلته ذکر شوي دي. په ښې انشاء کې د ګرامر، فعلونو، استدلال، منطق او آهنګ برخو ته باید پاملرنه وشي. د لیکوال عقیده، راښکون یا د کلام ښکلا په پام کې نیول کیږي. نوښت یا ابتکار، تخیل او ذوق د ښې انشاء ځانګړنې وي او هم به د انشاء نورې ستونزې وپیژندل شي.

## د لیکلو مهارت:

لیکل د اړوندې ژبې په رسم الخط سره ترسره کیږي. د هرې ژبې لپاره چې لیکني بڼې لري ځانته الفبایي توري، نښې او سمبولونه لري. دغه نښې په قرار دادي بڼه په ټولنه کې د خلکو له خوا رامنځته کیږي. ۱۵: ۳۱

د انسانانو له خوا دغه یو شمېر نښې او سمبولونه چې ځانګړې حرکي بڼې لري، ورته لیک یا لیکل ویل کیږي. د هرې نښې لپاره یو انځور (شکل) منل شوی وي. زمونږ د ژبې لیک دود هم د عربي ژبې له لیک دود یا رسم الخط څخه اخیستل شوی دي. ۹: ۱۰

هره نښه یا سمبول د یوه غږ نمایندګي کوي. پخپله یا د نورو نښو له ترکیب سره د با مفهومه صوتي غږونو، نور واحدونه او بڼې جوړوي. دا کوچني واحدونه کلمې دي. چې د شکلونو له ترکیب څخه یې عبارت او جملې جوړیږي. دغه مهارت د مورنۍ ژبې د لومړي درس څخه د لیکلو په فعالیت سره ترسره کېږي. زده کوونکي د کلمې او د هغو دتورو لیکل پر توره یا سپینه تخته ګوري یا ویني او بیا یې په عملي توګه په ښوونځي کې لیکي، چې ښوونځی یې د لیکلو ځای ګڼل شوی دی.

دغه مهارت په ښوونځي کې زده کیږي. ماشومان لومړی ځل دغه توري د ګوتو په واسطه په هوا کې لیکي، همدارنګه د کلماتو لیکل په شګه، د میز په سر د ګوتو په وسیله لیکي. دا ډول لیکل ډېر تکرار وي، وروسته بیا دغه لیکل پر تخته، کاغذ او کتابچو کې د قلم، نی او پنسل په واسطه لیکي.

لومړی د الفبا توري چې ساده او اسانه دي، په ترتیب او خپل ځای کې لیکي. ښوونکی ورته لارښوونه کوي، چې کوم توري څنګه او څه ډول ولیکي؟ له

کومه ځایه یې په قلم یا مارکر رسم کړي، د رسم کولو طریقې باید ورزده کړل شي، چې وکولای شي په اسانه طریقه د اړوند توري نښه یا انځور وکاږي. په عینې مهال کې د هغو غږونه وپیژندل شي. ښوونکي هغه ورته په صفا ډول تلفظ کوي، د تورو مخرجونه په عملي توګه ورښیي. د تمرین لپاره په هغو کار کوي، په ډله ایزه توګه او هم په انفرادي ډول د هغوی تلفظ او پیژندنه وربشپړوي.

له دې څخه وروسته بیا د حروفو او اسانه کلماتو په لیکلو پیل کوي. کورنۍ او د ټولګي ځانګړې دندې ورکول کیږي.

ښوونکي د هغو څارنه کوي. پر تخته او کتابچو کې د هغوی دندې ور اصلاح کوي او په دې ډول د زده کوونکو د لیکنې نیمګړتیاوې ورځ تر بلی بشپړیږي او زده کوونکي لاښه رهنمایي او هڅول کیږي.کله چې یو ښوونکی د تختې، چارتو او فلش کارت پر مخ لیکنه کوي، باید په ښکلي او سم خط سره وي، ځکه چې د زده کوونکو لپاره یې زده کړه او کاپي کول او لوستنه آسانیږي.

د زده کوونکي په هڅونه کې هم د خط ښه والی اغیزمنه ونډه لرلی شي.

د ښې املاء او انشاء لیکنه هم اړینه وي، ځکه چې د زده کوونکو لپاره سر مشق وي.

ښوونکی باید په لیکلو کې د زده کوونکي وده او پرمختګ په پام کې ولري. ښوونکی د لیکلو په مهال ماشومان، زده کوونکي پر چوکیو او ځمکې باندې په داسې ډول رهنمایي کړي او کښینوي، چې په اسانه ډول لیکل ترسره کړای شي. د لومړي ټولګي د زده کوونکو عضلات په هغه اندازه چې وړ وي پرمختګ نه کوي؛ نو له همدې کبله حروف او کلمې په ښکلی لیک سره نه شي لیکلای، لازم دي چې ورته مناسب کاغذ چې خط کشي شوی وي برابر او له غټو پنسلونو او قلمونو څخه کار واخلي، چې لیک یې ښکلی او مناسب ولیکلای

شي. لیک د ماشومانو او زده کوونکو لپاره یو تدریجي زده کړه ګڼل شوې ده. په یوه اوونۍ، میاشت او حتی په یو کال کې نه زده کیږي.

روحیات پیژندونکي وایي چې: پریږدۍ چې ماشوم په هر لاس چې زړه یې غواړي خط ولیکي.

هغه دیته اړ نه شي، چې په ښي لاس خط ولیکي، او له کیڼ لاس څخه منع کړای شي. دغه ډول اړ ایستنه منفي اغیزې لري، زده کوونکي نه شي کولای، چې په لیکنه کې پیاوړي او ښه تربیه شي. په دې برخه کې د هغو له ځواکمنۍ څخه کمیږي.

په هڅونې سره کیدای شي زده کوونکي خپل عادت پریږدي، چې د زده کوونکو په ګټه به وي.

په لیکنې سره کیدای شي لیکوونکي خپل نظر، عقیده او فکر نورو ته څرګند کړي. د لیک په واسطه د بشریت تاریخ را څرګندیږي. که څه هم له لیک څخه وړاندې هم بشري تمدن شتون لري، اما د لیک په واسطه یو څه مستنده بڼه خپلوي. لیک د بشریت د کلتوري شتمنیو په ژغورنه، ساتنه او لیږدونه کې د ارزښت وړ او ټاکونکی رول لري. نامتو لیکوال د خپلو لیکنو په برکت نه یوازې د خپلې زمانې او عصر له خلکو سره خبرې کوي؛ بلکې د راتلونکو نسلونو غوږونو ته هم خپل فکر او پیغام رسولی شي. ۳: ۵۰

د ارواپوهانو په نظر باید د لیک په ښودنه او پیاوړتیا کې باید لاندې ټکي په پام کې ونیول شي:

*لومړی:* پریږدئ چې زده کوونکي د خپل ذوق او خوښې سره سم یوه کیسه، ډرامه، مقاله، شعر او یا نور څه ولیکي.

*دوهم:* د لیک په ښوونه کې دې شاګرد ته ازادي ورکړل شي، له شکلي او فورمالستي لیکنو څخه دې مخنیوی وشي.

*دریم:* د گرامر، املا لیکنې په برخه کې دې انتقادي او افراطي بڼې نه غوره کوي، چې د مضمون محتوا ته زیان رسوي او د پیغام رسا والی له منځه څخه وړي.

*څلورم:* د لیک ښوونې ځنې اصول او قاعدې دې د اړتیا په وخت کې په عملي توگه تشریح کړای شي.

*پنځم:* د لیکنې اساسي موخه تل د مفکورو لیږدول وي. ښوونکي او زده کوونکي باید دغه اصل له تخنیکي برخو څخه لومړی وگڼي.

*شپږم:* کوم لیکوونکي چې په لیکنه کې تکړه او مهارت لري، هغه باید وستایل شي، چې لایې لیکنه سمه او په زړه پورې شي.

## د لیکلو لپاره ځنې مهارتونه:

د پیداګوژیکي مهارتونو په لړ کې ښوونکي باید لاندې مهارتونه او ټکي په پام کې ولري، چې په تدریجي او کرار ډول زده کوونکي د خط په زده کولو او لیکلو کې ورځ تر بلې پیاوړتیا ومومي.

*لومړی:* د چمتوالي دوره: په دې دوره کې د عضلاتو، حرکت د تورو او کلمو د لیدلو حس رامنځته کیږي.

ښوونکي د حروفو شکلونه په رنګه بڼه ورښیي، حرفونه او الفاظ ورته کاپي کوي، قلم نیول (پنسل، نی) د سلاید نیول، په هوا او مځکه لیکنه او داسې نور فعالیتونه ترسره کیږي، تر څو چې د زده کوونکو لپاره لیکل اسانه شي. ښي او چپ یا کیڼ لاس ماشومانو ته ښودل کیږي. که چیرې په دغه دوره کې د ماشوم زده کړې ته پاملرنه وشي؛ نو جوته خبره ده، چې نورې راتلونکې ورپسې دورې به یې هم د کامیابۍ سره مل وي.

*دویم:* د لیکلو دوره: دغه دوره د چمتوالي له دورې څخه وروسته پیلیږي.

په دې دوره کې ښوونکي باید حروف په ښه خط د تورې تختې پر مخ چې ټول زده کوونکي یې ولیدلی شي ولیکي. څه چې لیکي هغه باید توضیح او تشریح کړي. ښوونکي په عملي توګه د حرف یا توري لفظ لیکل چې له کومه پیل کیږي او څرنګه چیر ته پای مومي ورښیي.

د یوه توري او لفظ لپاره څو ځل لاس او ګوتو ته حرکت ورکول کیږي، چې زده کوونکي ددې لفظ او توري د له لیکلو سره عادت پیدا کړي. ښوونکي باید د ا په یاد ولري، چې ټول زده کوونکي یو ډول لیکنه زده کړي، که څه هم د زده کوونکو خطونه به سره توپیر هم ولري.

لیکنه یو حرکي فعالیت دی، چې په تدریجي توګه زده کوونکي هغه زده کوي.

په دې وخت کې باید ښوونکی د ژبې څلور واړه مهارتونه هم په پام کې ولري.

*دریم:* په لومړني (ابتدائي) ټولګي (لومړي ټولګي) کې:

ښوونکي په دې ټولګي کې چې حروف تدريسوي خپل حرکات په ځير تيا سره تنظيموي.

کله چې ښوونکي پر توره تخته څه ليکي بايد کټ مټ د کتاب په څير وي. د ليکنې پر وخت بايد د تختې يو لوري ته ودريږي، چې زده کوونکي په اسانه ډول تخته وليدلای شي. د زده کوونکو پاملرنه راوګرځوي چې د ښوونکي د لاس حرکات په سمه توګه ووينې.

د زده کوونکو هڅول اوتشويق اړين بريښي، کله چې د هغوی ليکنه او خط ارزيابي کوي بايد لاندې ټکي په پام کې ونيسي.

۱. د تورو په سمه بڼه ليکل.
۲. د حرفونو کوچنيوالی او غټوالی.
۳. د خط درشتوالی.
۴. د يو حرف (توري) اړيکې له بل حرف (توري) سره.
۵. د تورو تر منځ فاصله.
۶. د خط سموالی، کوږوالی (د خط د کرښو کږوالی).
۷. د خط پاکوالی او سموالی.
۸. د خط د ليکلو تيزوالی يا چټکه ليکنه.

دا به مو په يادوي، چې په لومړيو ټولګيو کې بايد په پښتو او دري ژبوو کې په نسخ خط سره ليکنه ترسره شي. وروسته کيدای شي، چې په نسخ او نستعليق خط سره ليکنه په تدريجی توګه وکړای شي. تجربو ښودلی ده، چې د چپ يا کيڼ لاس ليکونکي، د ښی لاس ليکوونکو په څير ليکنه کوي؛ مګر ښوونکي بايد له هغو سره لازمه مرسته وکړي.

هغه زده کوونکي چې ښه خط لري بايد وهڅول شي. د خط زده کړه په تدريجي ډول ترسره کيږي.

د خط په ليکنه کې بايد زده کوونکي لاندې لازمه وړتياوی پيدا کړي:

*الف:* د ویلو یا لوستلو وړ وي، د خط لیکنې نښې او علامې باید ولري.
*ب:* د جلا لیکنو او د خصوصي تجارت ګذارش ولیکلای شي.
*ج:* د ساده تشریحاتو لیکنه، پیښې لیکنه، د حالاتو څرنګوالی او د لارښوونو لیکنې.
*د:* ساده مکتوبونه، وړاندیزونه او نورې لیکنې.

## د لیک او لیکدود د لیکلو په خاطر څو وړاندیزونه:

- لومړی باید ماشومانو ته د اړوندې ژبې د تورو شکلونه په مجسم ډول وروښودل شي.

توري باید پر تخته، کارت او یا کتاب کې ور په ګوته شي. ورسره د هغو تورو تلفظ وکړي، چې ددې تورو اواز او تلفظ ته کلیدي تلفظ یا غږونه وایي. دا غږونه څنې لوړ تلفظ کیږي او څنې په ټیټ یا کښته غږ سره. مثلاً د (ب) غږ په (بادام) کلمه کې په لوړ اواز سره ویل کیږي. دغه توري او بڼې یې چې زده کوونکي په فزیکي یا جسمي ډول وپیژني او په مختلفو رنګونو د کارت پر مخ ورښودل شي، نو کیدای شي چې د هغو تورو شکل جسامت او توپیر یې د رنګونو په مرسته وکړای شي. هر توری او غږ یې د اوریدنکي، لیدونکي په ذهن کې ځای ونیسي. کله چې د دې تورو پیژندل او تلفظ بشپړ شي؛ بیا په دویم قدم کې د تورو ترکیب، ترل یا نښلول، د کلمې جوړول او بیرته کلمه په تورو تجزیه کول ور زده کول کیږي.
په دریم قدم کې د لنډو جملو ورښودل او زده کول لازم دي، چې زده کوونکي یې باید زده کړي. ۲۴: ۲۴
په څلورم قدم کې باید هغه نوي لغات او سپیڅلې کلمې چې په جملو کې راوړل شوي وي، زده کوونکو ته تدریس کړای شي.

**وروسته له هغې څخه باید د اړوندې ژبې نظم او نثر، د ژبې قواعد، ادب او تاریخ یې تدریس شي.**

**په دې مهال کې د لیکلو او لوستلو مهارت یو څه د ماشومانو او لوستونکو بشپړ شوی وي، د جملو مفهوم او مطلب اخیستلای شي، مګر بیا هم اړتیاوي چې له متن څخه د ځینو کلمو او لغتونو مانا او مفهوم پخپله استاد یا ښوونکی شرح کړي.**

## د ژبې د زده کړې طریقې:

**د ژبی زده کړه په لاندي دري پړاونو کې ترسره کیږي:**

**_الف:_ د حروفو (تورو) لوستل او ډول.**

**_ب:_ د جملې، عبارت ویل او زده کول.**

**_د:_ په لوړ اواز یا جهر او پټه خوله مطالعه کول.**

**پورتنی مرحلې هره یوه د ژبې په زده کړه کې ځانګړی ارزښت لري. اصلي هدف ورڅخه مطالعه کول، د متن د پوهیدنې ځواک موندنه ده، چې بنسټ یی د حرفونو زده کړه جوړوي. له دې کبله چې اصلي موخې ته ورسیږو باید لومړی توري زده کړل شي.**

**د تورو د زده کړې ځینې ازمایل شوې طریقې په لاندې توګه ښودل شوي دي.**

**_الف:_ جوړښتي یا ترکیبی طریقه: په دې طریقه کې ښوونکي له جز څخه د کل لورته درومي.**

**په دې بنې سره دوه طریقې شهرت لري: یوه طریقه د هجا توري (الفبا) او بله هم د طریق الصوت بلل شوی ده. په هجایي (الفبا) طریقه کې حرفونه یا توري په عادي توګه باید یاد کړل شي.**

**یعنی له (ا، ب، پ، ت- ی) توري په خپل نامه سره ور زده کیږي؛ وروسته بیا زیر، زور، پیښ او ورپسې بیا دوه حرفیزه، درې حرفیزه لفظونه او بیا ورپسې**

جملې او بالآخره عبارتونه ور زده کیږي. د توري د غږ (صوت) په طریقه کې د نوم پرځای په توري یا حرف باندې یا اواز د تورو باندې خج (فشار) ډېر راوړل کیږي. د زده کړې طریقه یې د الفبا د تورو په شان وي.

ب: تحلیلی طریقه: دا طریقه د لومړۍ طریقې بر عکس له کُل څخه د جز لورته ځي، په آخرکې د توري (حرف) شکل ورښودل کیږي. دلته درې طریقې شتون لري:

۱. د کیسو طریقه: لنډې کوچنۍ کیسې چې له دوه حرفیزه او درې حرفیزه کلمو څخه جوړې او حرفونه وپیژندل شي.

۲. د جملو طریقه: د تورو یا حرفونو پیژندنه د لنډو جملو په واسطه چې له دوه حرفیزه او درې حرفیزه کلمو څخه جوړې وي.

۳. د الفاظو په واسطه د تورو (حرفونو) پیژندنه چې دوه حرفیزه او درې حرفیز وي، او هغه تمرین کړل شي.

ج: مخلوطه یا ګډه طریقه: جوړښتي یا ترکیبي او تحلیلی طریقې چې د مختلفو پړاوونو څخه رامنځته کیږي، یوازې په خپل چوکاټ کې د ماشومانو لپاره معلومات په بشپړه ډول نه شي وړاندې کولای. یا په بل عبارت: یو طریقه د بلې طریقې لپاره مرستندویه یا متممه پیژندل شوې ده. له همدې کبله په یوې طریقې بسنه کول له اصلي هدف څخه وروسته پاتې والې دی؛ نو وړ ده، چې ښوونکي له مختلفو میتودونو (طریقو)  څخه په مناسبو ځایونو کې ګټه واخلي. د تدریس لپاره ګډوله طریقې اغیزمنې وي، په داسې ډول چې ښوونکي، ساده اسانه کلمې، نومونه، لفظونه ورته فهرست کوي. د یو چارت او کارتونو پر مخ یې ورته ښیي او په ترتیب سره مطلوب اصلي (حرف) په ګوته کوي. د دې تر څنګ د هماغه څیز عکس یا انځور ورته پر تخته رسمیږي، د کارتونو پر مخ د حرفونو په ترتیب ایښودلو سره اصلي نوم جوړیږي. د نوم لیکلې بڼې او انځور ته سره مطابقت ورکول کیږي.

ددې د تدریس کولو طریقه داسې ده: چې لومړی تصویر ښودل کیږی، بیا یی نوم اخیستل کیږي.
دغه عمل دوه درې ځله تکراریږي، وروسته بیا په چارت کې د تصویر نوم د هغه لاندې ایښودل کیږي، چې بیا وایي د هغه شي نوم په چارت کې لیکل شوی دئ. څو وارې دغه چارت جلا جلا ورښودل کیږي او تمرین ترسره کیږي.
په دې توګه په مطلوب (توري) زیات فشار راوړل کیږي، وروسته بیا هغه توري په توره تخته باندې په یوازې ډول لیکل کیږي او اواز یې زده کوونکو ته تمرین کیږي. په آخر کې ښوونکي د (توري) نوم اخلي او ماشومانو ته وایي چې دا ددي (حرف) نوم دی. په ترتیب سره اسانه او بیا متوسطه او په آخر کې مشکل توري ورښودل کیږي.کله چې حروف په دی ډول تدریس شول، په آخر کې د تورو ترتیب په روایتي، منطقي بڼه تدریس کیږي. اصلي بڼه یې په چارت کې ورښودل کیږي. په همدې ډول د الفبا د پیل ترتیب او طریقه ورښودل کیدای شي. په دې روش کې (وګوره، ووایه) څخه ګټه اخیستل کیږي. له دې څخه وروسته بیا د ویلو او د متن د درک کولو وار رسیږی.

## ژبه د لاندې اصولو په پام کې نیولو سره ښه زده کیږي:

*لومړی:* له معلوم څخه مجهول ته: په دې صورت کې د کوچنیانو لومړنی زده کړه له الفاظو څخه پیل کیږي.
په لومړیو مرحلو کې ځیزونه او شیان باید د انځور سره په اړیکه کې و اوسي، هغه چې په خپل کور او یا چاپیریال کې یې زده کړي وي، د هغو په مانا او مفهوم پوه شوي وي. وروسته بیا که په درس کې یو نوی لفظ راوړل شو، چې ماشوم د هغه په مانا پوه نه شي او یا یې هم په خپل چاپیریال کې اوریدلي نه وي؛ ښوونکي ته لازمه ده، چې په آشنا کلمو سره هغه شي یا لفظ زده کوونکي ته داسې واضح کړي چې د هغه شي سره په اړیکه کې وي او زده کوونکي په

خپله وکولای شي هغه بیان کړي. له همدې امله دې ډول زده کړې یا آموزش ته چې دا رنګه اصول پکې وکارول شي د (زده کړې لیږد (انتقال) له معلوم څخه مجهول ته) په نوم یادیږي.

*دویم:* له اسان څخه و مشکل ته: په دې برخه کې ښوونکي باید هغه کلمې، لغتونه او الفاظ وکار وي، چې زده کوونکي د هغو په مانا او مفهوم وپوهیږي. هغه په اسانۍ سره لوستلای شي، دې ته اسان وايي. ۵: ۱۲۰

هغه چې زده کوونکي يې د الفاظو په مانا نه پوهیږي او نه يې هم په بشپړ ډول په مفهوم پوهيږي دې ته ستونزمن یا مشکل وایه شي.

د بهتره ویلو او درک کولو اصول هغه دي، چې لومړی ښوونکی اسانه الفاظ او کلمي ووايي، د هغو د تکرار او درک کولو په رڼا کې نورې مشکلې کلمې او الفاظ داسې ولولي چې د هغو په درک او پوهیدلو کې اسانتیاوي رامنځته شي.

همدا ډول ښوونکی د لغاتو ذخیره او کلمات د زنځیر د کړۍ په څېر په پرله پسې توګه زیات کړي. تر څو چې د ودې او پرمختیا په علمي کچې کې د زده کوونکو مرسته وشي.

*دریم:* له مشخص (محسوس څخه پټ (مخفی) ته: د زده کړې دا اصل ډیر ارزښت لري.

مطلب دا چې په ابتداء کې ښوونکي هغه الفاظ تدریس کړي، چې د پوهې او علم له نظره زده کوونکو ته مشخص وي.

او هغه الفاظ چې د پنځه ګونو حواسو په واسطه د زده کوونکو یا ماشومانو له خوا تلفظ او ادا کړای شي او په هغه هم پوهېږي.

د ساري په توګه: موټر د ماشومانو لپاره یو مشخص او ټاکلی لفظ دی. په دې شرط چې ماشوم هغه لیدلی یا اوریدلی وي. او یا يې په هغه کې سفر کړی وي. مګر د پیښې (حادثې) لفظ د ماشوم لپاره، پټ (مخفی) مفهوم لري، څرنګه چې هغه په ژوند کې پیښه یا حادثه نه ده لیدلې، که چېرې ښوونکی دغه

(پیښه) چې ماشوم ته مفهوم نه دی او نه یې پیژني، غواړي هغوی ته یې ورو‌پیژني، نو ښوونکی باید دغه پټ (مخفی) لفظ ته چې په ذهن کې دی د موټر د پیښې یا حادثې سره په تړاو کې تشریح کړي، چې د موټر د حادثې په واسطه په دغه مفهوم کوچنی وپوهیږي. معلم ته لازمه ده چې په لومړي قدم کې له مخفي، پټ، او غیری محسوسو الفاظو د کارولو څخه ډډه وکړي. یوازې د شیانو، څیزونو، نومونه زده کوونکو ته وښیي، چې هغوی په اسانه سره هغه درک کړای شي. ۲۹: ۴۱

*څلورم:* د تضاد، ورته والي (تشابه) اصل کارول: د ورته والي (تشابه)، تضاد د اصل په کارولو سره ماشومان د ستونزمنو الفاظو مفهوم ډېر ژر درک کوي، هغه پیژني او په مانا یې پوهیږي. له دې اصل څخه مطلب د متضادو متشابه او مترادفو الفاظو او کلمو په واسطه د زده کړې ترسره کول دي.

د ساري په توګه د رڼا د لفظ ورته، روښانه، متضاد، شپه- ورځ او د نازک، نري په وړاندې د پلن، ډبل کلمې همدا ډول سپین، تور، لنډ، اوږد او داسې نورې متضادې کلمې په ټولګي کې په زده کوونکو او پخپله په عملي توګه وروښیي. په دې ډول د زده کوونکو د فکري تولید ځواک پیاوړي کیږي او وده مومي، د تخیل او درک ځواکمني هم رامنځته کوي. مطلب دا چې ښوونکی هغه لفظونه ماشومانو ته وروښیي، چې په فزیکی یا جسمي توګه په خارج یا چاپېریال کې شتون ولري او د هغو ضد پیدا کړي؛ دا د ماشومانو په سرشت کې اخښل شوي وي، چې هغوی د متضادو، مشابه الفاظو چې په پوهه، زده کړه کې رول لري او د هغو په واسطه په ډېر لږ وخت کې کولای شي نور ستونزمن الفاظ وپیژني، په مانا او مفهوم یې پوه شي. د ماشومانو لپاره په لومړي قدم کې الفباء د ویلو او نوشته کولو په خاطر چې زده کړه رامنځته شي، اړینه ده.

د هرې ژبې الفباء ځانته بڼې (شکل)، اوازونه، نومونه او د لیکلو لارې او طریقې لري.

**د الفباء د زده کړې لپاره باید څلور اړخونه په پام کې ونیول شي، چې هر یو اړخ یې له بل سر تړلی دئ:**

**_الف:_ د توري (حرف) نوم. ب: د توري بڼه (شکل).**

**_ج:_ د توري آواز**

**_د:_ د لیک طرز**

## په تولیزه توګه د لیکلو د مهارت لپاره لاندې فعالیتونه اړین دي:

- **د لغتونو استعمالول په مناسبو جملو کې، هغه کلمې او لغات چې ښوونکي ورکړي وي.**
- **زده کوونکو ته داسې متن ورکول کیږي، چې تش ځایونه ولري. ددې په څنګ کې مقصودې کلمې او لغتونه هم ورته په غیر منظم ډول یاداشت ورکوي، زده کوونکي هغه په مناسبو تشو ځایونو کې لیکي. یا هم زده کوونکي اړوند متن په لوړ غږ لولي، زده کوونکي له هغه څخه مطلوب لغتونه په تشو ځایونو کې لیکي.**
- **داسې کلمې په زده کوونکو ولیکئ چې دسر توري یې (م، ح او یا ، ل...) وي؟**
- **زده کوونکو ته ګډې وډې کلمې، ګړنې او لغتونه ورکول کیږي، ورڅخه غوښتل کیږي، چې له هغو څخه یو متن ولیکي.**
- **له زده کوونکو څخه غوښتل کیږي، چې څو (درې حرفي، څلور حرفي او دوه حرفیزه) کلمې ولیکي.**
- **زده کوونکي د (وطن، مور، ازادي، باغ) په هکله څو جملې او پاراګرافونه لیکی.**
- **یوکیسه په غیرې مرتب ډول زده کوونکو ته ورکول کیږي، هغوی یې په مرتب ډول لیکي.**

- ښوونکي زده کوونکي هڅوي، چې د يو انځور، منظرې له ليدلو څخه يو څه وليکی او يا هم له ټولګي څخه بهر يوه ژوندۍ صحنه ګوري بيا د هغې صحنې او تصوير په هکله يو څه ليکي.
- ښوونکی زده کوونکو ته يو تمرين ورکوي. زده کوونکو ته وايي، چې د پوښتنو د ځوابولو څخه يو متن يا پارګراف وليکي.

د ساري په توګه:

۱. مور ولې د ماشومانو لپاره ډېر مهمه ده؟
۲. د ماشومانو په روزنه کې څومره زحمتونه په ځان مني؟
۳. مور پر ماشومانو باندې څه حقوق لري؟
۴. مورې بايد د خپلو ميندو سره څه ډول سلوک وکړو؟

- ښوونکي پر يوی موضوع لکه:، علم، جهل، خپلواکي او داسې نورو باندې په ټولګي کې بحث کوي.

زده کوونکي هم پکې ګډون کوي. وروسته له بحث څخه بايد زده کوونکي د اړوندې موضوع محتوا پخپله وليکي.

- زده کوونکي بايد له کتاب څخه متنونه کاپي نه کړي، ښوونکي بايد هغوی وهڅوي چې لومړی کتاب په ورو مطالعه او بيا يې منځپانګه يا هدفمند ټکي د فکر کولو په مرسته له خپل ذهن څخه وليکي. په دې صورت کې د ليکلو مهارت ښه وده موندلی شي.
- ښوونکی له زده کوونکو څخه د پرون ورځې د کار او فعاليت په اړه ليکلی ګذارش غواړي، هغوی يې بايد په خپلو کتابچو کې وليکي.

# د املاء اصول او هدف یې

د تورو د تلفظ او اوازونو پر ځای خپله حرف لیکي، چې د اړوند غږ نماینـــدګي وکړې، په کلمو، جملو، ګړنو کې د هغو سمه او صحیح بڼه لیکنـــه امـــلاء ګڼـل کیږي. زده کوونکي باید دې مهارت ته وده ورکړی، ترڅـــو پـــه دې وتـــوانیږي، چې: د کلمو د تلفظي بڼې او جوړونکو یا جوړښتي تـــورو (حرفونـــو) تـــر مـــنځ مناسب پیوند رامنځ ته کړاي شي. ددې مهـــارت د پیاوړتیـــا لپـــاره پـــه جملـــو جوړولو، انشاء لیکلو او په کلي ډول د لیکنې د مهارت په وده کې ښې زمینـــې برابریږي. د سمې او درستي املاء څخه مفاهیم ژر او بشـــپړ اخیســـتل کیـــدلی شي.

د املاء د ټاکلو اصولو پر بنسټ لیکل د هرې اړوندې ژبې لوستنه، لیکنه او پوهیدنه اسانوي.

هدف یې په هره معیاري ژبه کې د کلمو د تورو یوالی، جوړښت او د هغو په واسطه د مفاهیمو افاده کول دي.

په دې مانا چې د کوم اواز لپاره کوم توری او د کومې کلمې لپاره څه ډول جوړښتي بڼه وکارول شي.

په کلمو، ګړنو، جملو کې باید د ټاکلو او منلو شوو جوړښتونو بڼې د مطلب د ښې افادې لپاره کارول کیږي.

املاء د ژبې واحده معیاري فونولوژیکی او مورفولوژیکي بڼې جوړوي، چې په نتیجه کې د انشاء په ایجاد او رساوالی کې ستره ونډه لري. په هره ژبه کې د املاء بڼې د هغې ژبې له اصولو سره سمې باید ولیکل شي.

زده کوونکي باید د املاء د لیکلو په وخت کې هغه ټکي چې ښوونکی یې دغږونو، جملو او کلماتو په چوکات کې اوروي، رعایت وکړي.

*لومړی:* هغه ښه واوري د کلمې دقیق تشخیص وکړي او هغه درک کړي.
*دویم:* هغه په ځیرتیا سره تشخیص کړي. تصویر په یاد راوړي او هغه مجسم کړي، بیا په ذهن کې هغه کلمه سمه وپیژني.
*دریم:* هغه صحیح او سمه ولیکی. د کلمې جوړونکي توری سم لیکل او بیا د هغې مناسبې کلمې لیکل. د هر توري (حرف) غږ او بڼه یې له ذهن سره په مستقیم ډول اړیکې ولري:
*الف:* د کلمې درک د اوریدلو او توپیر کولو حافظه
*ب:* بیا د کلمې پیژن کتونکې یا لیده نیزه، حافظه. چې دوې برخې لري: د تورو جلا جلا صحیح بڼه او بله برخه یې د ترتیب لیده نیزه حافظه (بنیایي حافظه)
*ج:* د کلمې بیا لیکل خوځښتي یا حرکتي حافظه.
په املاء کې د رسم الخط، ګړدود (لهجه) یعنې سیمیزو، غږونو جغرافیاوي اغیزې رول لري.
کیدای شي پورتني اغیزې ناسمې لیکنې او په لیکنه کې ګډوډي رامنځته کړي. مثلاً:
د (ښادي- خادي) په کلمو کې مانیز او غږیز توپیر رامنځته شوی دی، چې لوستونکي په شک کې اچوی.
همدغه وجه ده، چې په املاء کې یو لړ صوتي، شکلي محلي، بدلون، حذف، زیاتوالی، کموالی رامنځته کیږي.
دغه ډول ستونزې، د ژب پیژندني په پوهی (علم) پورې اړوندیږي. دغه پوهه کولای شي. د املاء لیکنې د پوهیدو او سمې املاء سره مرسته وکړي، چې په لیک کې له ګډوډیو څخه مخنیوی وشي.

## د املاء د تدریس اصول

املاء او ملاء په لغت کې (مهلت ورکولو- ډکولو) ته وايي. په ادبی اصطلاح کې خپلې خبرې او يا د بل خبرې په صحيح ډول ليکل دي.

که څوک له ځانه څه نه شي ليکلای د بل ليک له مخې يې نقل کولی شي دغسې کاپي کولو ته املاء نه شو ويلای. ۱: ۱۶

املاء يو عربي لغت دی، چې د (ډکولو) مانا لري، هغې وينا او تقرير کولو ته هم وايي چې بل يويې وليکي.

هغه مطلب چې ښوونکي يې ووايي او زده کوونکي يې وليکی، همدا ډول د کلمو د ليکلو طريقې او سمو ليکلو ته هم املاء ويل کيږي. په لنډه توگه (د چا د وينا د ليک دود سره سمې ليکنې ته) املاء وايي.

د ليک طرز ته هم املاء وايه شي. يا د آزموينې په ډول د بل وئيلي عبارت ليکنې ته املاء وايي.

د دې کلمې جمع (املاگانې) په څير جوړيږي. يا په بل عبارت ((هغه مطلب ليکل دي چې بل يې ووايي يا يې ولولي)).

د املاء دکلمې په څنگ کې په يو شمېر ژبوو کې د (ديکتې يا ديکته) لغت يا کلمه هم کارول کيږي چې اصلي فرانسوي کلمه گڼل شوې ده.

د لومړنيو ښوونځيو د زده کړو په پروگرامونو کې د املاء تدريس لاندې موخې لري:

۱. د پښتو ژبې د کلمو، جملو صحيح بڼه ليکل او زده کول.
۲. د زده کوونکو د املايي ستونزو تشخيص، پيژندنه او د هغو له منځه وړل.
۳. د ليکنې د زده کړې تمرينونه او له مخې (رونويسي) ليکنه ترسره کول.

دا معلومه او طبعي خبره ده، چې املايي غلطۍ په ليکنه کې ستونزې رامنځته کوي.
د ټولنې د افرادو تر منځ ښې ژبنۍ (زباني) اړيکې نه ترسره کيږي. له همدې کبله دې تدريس ته بايد جدي پاملرنه وشي، چې د ټولنې د افرادو تر منځ ښه تفاهم او اړيکې په اسانه او سمې واضح بڼې سره تامين شي. سرسيره په پورتنيو اهدافو، املا ليکنه زده کوونکو ته د لاندې مهارتونو وړتياوې هم ور په برخه کوي او مرسته ورسره کوي چې وده ومومي.
*لومړی:* په ځيرتيا سره غوږ نيونه؛
*دويم:* تمرکز او پاملرنه کول ويونکي (ښوونکی) ته؛
درېم: له مخې ليکنې (رونويسي) يا غيرې فعاله ليکنې، جملې جوړونې، انشاء يا فعالې ليکنې ته چمتوالی.
*يا په دې ډول:* له مخې ليکنه ← املا ← جملې جوړونې او انشاء

(غيرې فعاله ليکنه) (نيمه فعاله ليکنه) (فعاله يا خلاقه ليکنه)

## د املاء د زده کړې د روش پړاوونه:

*لومړی پړاو:* د املا لپاره يو متن غوره کول، په توره تخته ليکل او د هغه ويل يا لوستل زده کوونکو ته.
*دويم پړاو:* د املاء ويل (قرائت) د ښوونکي له خوا او زده کوونکي هغه ليکي.
*درېم پړاو:* ډله ايز يا ګروپي تصحيح کول او د املايي غلطيو فهرست جوړونه.
*څلورم پړاو:* د املايي ستونزو د حل لپاره ډول ډول يا متنوع تمرينونه ترسره کول.
*لومړي پړاو:* د املا د متن غوره کول او په توره تخته د هغې ليکل او ويل دي.
په لومړي پړاو کې ښوونکي د اړوند درسي واحد څخه کلمې، جملې او هم د تيرو درسونو مشکلې کلمې په ښکلي خط په توره تخته ليکي. د متن اصول په

**پام کې نیسي. لازم دی چې ښوونکي (معلم) د هر متن املاء په غوره کولو کې لاندې ټکو ته پاملرنه وکړي.**

**_الف:_ هر متن چې لیکو باید د جملې لرونکي وي؛ په یوازې توګه د کلمو له غوره کولو او لیکنې څخه باید ډډه وشي.**

**_ب:_ د جملو جوړونکي کلمې باید په متن کې له هغو تورو (حرفو) څخه تشکیل شوي وي، چې دمخه تدریس شوي وي.**

**_ج:_ د املاء لپاره باید د درسي کتابونو څخه بهر په سلوکې له شل کلمو څخه زیاتې ونه کارول شي.**

**_د:_ د درسي کتابونو د کلمو او جملو څخه پرته چې ویل شوې وي، ځنې نورې جملې هم په پام کې نیول یا کارول لازم دي.**

**_هــ:_ هغه کلمې او جملې چې لیکل یې یو څه زده کوونکو ته ستونزمن وي، کیدای شي بیابیا راوړل شي. په هره املا کې یې کارول د زده کوونکو لپاره ګټور او هم د زده کوونکو پرمختګ پرې اندازه کیږي.**

**ښوونکي یو ځل په لوړ غږ سره متن وایي. بیا یې په حسابي توګه زده کوونکو ته د تابلو له مخې تکرار وي. له زده کوونکو څخه غواړي، چې په ځیرتیا سره د تلفظ څرنګوالي ته غوږ ونیسي.**

**پاملرنه دې وشي، چې زده کوونکي د کاغذ، تختې او میز پر سر لیکنه ونه کړي، یوازې د سترګو په حرکاتو او لیدلو سره د متن جوړونکې کلمې او جملې د تابلو له مخې وګوري او فقط غوږ ونیسي.**

**_په دویم پړاو کې:_ ښوونکي املا قرائت کوي او زده کوونکي هغه لیکي:**

**معلم متن له تابلو څخه پاک او یا هم لرې کوي، د زده کوونکو له چمتوالي څخه وروسته ښوونکي په لوړ اواز په حسابي توګه هغه متن ورته وایي؛ تر دوه ځله پورې یې ورته تکرار وي.**

د متن اواز په حسابي توګه د کلمې په کلمې له ويلو څخه بايد ځان وساتي، د ويلو په وخت کې بايد اسمي، فعلي برخې او د جملې نور بشپړونکي توکي په پوره توګه قرائت کړي؛ ځکه چې زده کوونکي د جملې په جوړښت، (بافت) او مانا يې برخو پوهيږي او اشنايي ورسره پيدا کوي. په آخر کې يو ځل بيا املايي متن ښوونکي په مناسب غږ سره تکراروي؛ په دې صورت کې هغه زده کوونکي چې په ورو يا سست ډول ليکنه کوي هم خپلې ستونزې له منځه وړي او ځان رسوي.

*دريم پړاو:* يا د املاء د اصلاح کولو طرز: د ډله ايزې املايي تصحيح او نورو املايي غلطيو فهرست کول.

ښوونکی د زده کوونکو املاء وې راټولوي، غلطۍ او سهوې يې د لارښود مطابق جمع بندي کوي او غلطۍ يې اصلاح کوي. دغه پړاوو د زده کوونکو د بشپړ ګډون او مشارکت په واسطه ترسره کيږي.

ښوونکي پرته له کوم نوم اخيستو څخه د هر يوه املاء ګوري او څيړنه يې کوي يې. ستونزې په هرې املا کې په ګوته کوي او مشکلات راباسي. په دې ترتيب سره د لومړني زده کوونکي املاء په لاس کې نيسي، د بل زده کوونکي په مرسته يادې شوې کلمې له مخې ليکي، په همدې ډول د دويم زده کوونکي او ورپسې دريم... او نورو زده کوونکو، املايي کار ارزوي. د هغو غلطۍ د نورو زده کوونکو په مرسته د تابلو پر مخ په صحيح بڼه ليکي. تکراري غلطۍ د يوې نښې په واسطه ورښودل کيږي.

همدارنګه د املاء د کار په آخر کې د ستونزو او غلطيو په شمېرلو سره زده کوونکي درجه بندي کيږي. په دې توګه د هغو د املاء دودی او پرمختګ اسانتياوې رامنځته کيږي. يا خو زده کوونکي يو د بل کتابچې اخلي او په دقت سره يې املا وې ګوري او غلطۍ يې په ګوته کوي. بيا ښوونکي خپلې تجربې کاروي.

*په څلورم پړاو کې:* د لومړيتوبونو پر بنسټ د هغو ډول ډول تمرينونو څخه کار اخيستل، چې املايي پيدا شوې ستونزې له منځه وړي. د هغو تمرينونو څخه کار اخيستل، چې ډيرې املايې ستونزې حلوي لکه د تورو (حرف)، کلمو ليکنه، چې د مخه ورته اشاره وشوه. همدا ډول د کلمو، جملو جوړونه، چې وروسته به بحث پرې وشي، د زده کوونکو د ليکنې د مهارت په ودې پياوړتيا او ځواکمنې کې مرسته کوي.

## د کلمې جوړونې زده کړه:

کلمه جوړونه د فعالې ليکنې د پيل مرحله ګڼل کيږي. د کلمو جوړولو په تمرين سره کولای شو زده کوونکي د کلمو د داخلي جوړښت سره آشنا کړو. د دې کلمو په آشنايي سره زده کوونکي کولای شي بهتره کلمې په املاء، جمله جوړونې کې په ښه او کامياب ډول سره وليکلای شي. د کلمو په جوړونه کې کولای شو د لاندې تمرين له بنې او طرز څخه ګټه واخلو:

۱. د کلمو په جوړونه کې د تورو (حرفونو) رول:

*الف:* د داسې کلمو ويل او ليکل (ښار، ګل، ميوه، حيوان، غذا، رنګ، ښځينه نوم، نرينه نوم...)، چې په ځانګړي توري پيل يا ختم شي.

| د کلمې لومړي توري | ښار | ونه او ګل | ميوه | حيوان | غذا | رنګ | ښځينه نوم | نرينه نوم |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| س | ... | ... | سنځله | سنډا | سوکړک (جواری) | سور | سارا | سردار |
| ش | شبرغان | شفتال، ګل | ... | شرمښ | شوړومبې شوروا | ... | شبنمه | شاپور |
| ب | بلخ | بادام ببری | ... | ... | مستي | بادامي | بنکه | بابر |
| آ | ... | ... | | ... | آشک | آبي | آينه | ا |
| م | ميدان ښار | | منه | ميښه، ماهي | مکروني | مُشکي | مينه | ... |

کيدای شي ځوابونه په دې ډول وي: سمرقند، آلوبالو، شير برنج، آش، سوسن، سپين، باور، شرينه او داسې نور نومونه او کلمې راشي.

**ب: د کلمو د سرچپه کولو تمرین: لکه: میز- زیم- انور- رونا- کش- شک- ناک- کان- راز- زار- کوچ- چوک...**

**۲. د صرفي کلمو د جوړونې ځانګړي تمرینونه:**

***الف:* مفرد او جمع: کتاب- کتابونه- مور- میندې- پسه- پسونه- لیوه- لیوان- میز- میزونه- سړی- سړي- ښځه- ښځې... او داسې نور.**

***ب:* مختاړي او روستاړي: مختاړي (پیشوند) Prefix هغو تاړو ته ویل کیږي، چې د کلمې په سر پورې نښلي او یو نوی مشتق رامنځته کوي.**

***لکه:* مه (نهې) مه کوه، مه خوره، مه کښینه، مه ګوره...**

**نه (نفی)، نه ویني، نه پاڅیږي، نه خوري، نه ځي...**

**همدا ډول روستاړي لکه: بزګر- ، کرګر، زرګر فاعلي صفات دي.**

**نسبتي روستاړي لکه: کامه وال، ښارنوال، باندہ وال چې یو نوم، قام، ځای، زمان، جنس او داسې نوروته نسبت ورکوي. دیته ورته نور صرفي روستاړي او نور کلمه جوړونکي روستاړي تمرین کولای شي.**

## د جملو جوړونې زده کړه:

**جمله جوړونه په زده کوونکو کې د فعالې لیکنې ځواکمني رامنځته کوي. په دې مانا، چې لومړی له زده کړې وروسته له مخې لیکنه یا (رونویسي) بیا د نیمه فعالې لیکنې زده کړه (املاء) او ورپسې بیا د فعالې لیکنې زده کړې یا خلاقې مرحلې ته د زده کوونکو ځواکمني رسیږي. دغه مرحله چې د جملو جوړونې په درس سره پیل کیږي، په حقیقت کې د انشاء لیکنې د درس د لړۍ د پیلیدو مرحله هم ورسره شروع کیږي.**

**د انشاء د مهارت د ترلاسه کولو سره زده کوونکي کولای شي خپل پیامونه، لیکنې خبرې تولید او فرضي او یا واقعي مخاطب ته یې وړاندې کړي. جمله جوړونه په اصل کې د زده کوونکو چمتوالی د انشاء د درس لپاره ګڼل شوی دی، یا په بله وینا د انشاء د درس سریزه ورته وایي.**

**د جملو د ډولونو سره لکه: امري جمله، خبري جمله، پوښتنيزې جملې او تعجبي جملو سره آشناء کيږي.**
**د جملو جوړولو په لړ کې زده کوونکي د ژبې د نورو برخو سره لکه: نومځري، نومونه، ستاينومونه... د جملې په جوړښت کې تجربه کوي او غيرى مستقيم ډول د پښتو ژبې نحوي او ګرامري توکي پيژني. په جمله جوړه ونې کې دوه اصله په پام کې نيول کيږي.**

***الف:*** **دجملې پيام بايد، چې د مانا او هم دژبنيو حقايقو له پلوه سره صحيح او متناسب وي.**
***ب:*** **د جملې نحوي جوړښت بايد د پښتو ژبې د اصولو او جملې جوړونې له قواعدو سره سمون ولري.**
**له همدې کبله دلته د جملې جوړونې د تدريس او اهميت په اړه د يو شمېر مطالعاتو او د مورنى ژبې او خارجي ژبوو د ماهرينو د تمرينونو د ټولګي يادونه کوو:**

## د جملې جوړونې د تمرینونو ډولونه:

**د جملې جوړونې د زده کړې په اړه مختلف تمرینونه شته، چې له هغو څخه، ځنې مهم یې عبارت دي له:**

**۱. شفاهي جمله جوړونه: مخکې له دې چې له زده کوونکو څخه وغواړو، چې په لیکني (مکتوبي) توګه جملې ولیکي یا جوړې کړي، باید په هغو کې په شفاهي تمرینونو سره ور ذهني، رواني چمتوالی او وړتیا رامنځته کړای شي. هغه طریقه چې کولای شي په شفاهی جمله جوړونه کې ترې ګټه واخیستل شي هغه عبارت دي له:**

***الف:* د پوښتنې او ځواب یا سوال او ځواب کولو تمرین: دغه تمرین د پښتو مطالبو پر اساس او یا هم د انځورونو، تصویرونو په مرسته ترسره کیږي. په دې طریقې سره زده کوونکي هڅول کیږي، چې د ویل شوي متن یا د ښودلو شوو انځورونو په اړه سوالونه پوښتنې مطرح کړي. او یا هم د ښوونکي پوښتنو ته وړ ځوابونه ورکړي.**

***ب:* دویم ځل جوړونه یا دوباره جوړونه: په دې تمرین کې د زده کوونکي څخه غواړو، هغه جمله چې ویلې یې وي یا ښوونکي ورته ویلی وي، هغه دویم ځل جوړوي یا یې دوباره سازی کوي، په خپله ژبه یې بیا جوړوي او وایي یې.**

***ج:* په ورکړل شوو کلمــو باندې جملې جوړول: په دې طریقې سره له زده کوونکو څخه غوښتل کیږي، چې له ورکړ شوو کلمو څخه په شفاهي توګه جملې جوړې کړي. ۳۱: ۷۰**

**۲. د جملې د سموالي تشخیص: په دې ډول تمرین سره د جملې صحت او سقم پیژندل کیږي. زده کوونکو ته څو صحیح او غلطې جملې ورکول کیږي، هغوی یې سمې او ناسمې جملې په نښه کوي، د بڼې او مانا له مخې یې ارزوي.**

**د ساري په توگه: گلالۍ مدرسې ته لاړ- مړوند کور ته ځي- اوښ الوزي- نجار خبرې کول- ځې ته کورته به- ولې راغلي دئ... زه ځم.**

**۳. د جملې د کلماتو بدلون یا تغیرول: په دې تمرین سره زده کوونکي لیکل شوي جملې داسې بدلوي، چې په جمله کې ښوونکی د ځینو کلمو لاندې، خط ایستلی وي، زده کوونکي کولای شي د هغو کلمو پرځای نورې کلمې ولیکی، چې په دې صورت کې د کلمې مانا بدلیږي او هم نوې جمله جوړیږي. د زده کوونکو سویه لوړیږي. د ساري په توگه لاندې جملو ته پاملرنه وکړئ:**

**د تضاد په ډول: نن هوا ډیره سړه وه!- نن هوا ډیره گرمه وه!**

**راتلونکې زمانه: نن به کندهار ته لاړشم!- سبا به هرات ته لاړ شم**

***منفی:* زما ناک خوښیږي!- زما ناک نه خوښیږی**

***پوښتنه:* زما خپل ښار خوښ دئ!- ستا خپل ښار خوښ دی؟**

**۴. د کلمو ډلگۍ جوړول: ددې تمرین په واسطه د کلمو تر منځ مانايي اړیکی موندل کیږي.**

**زده کوونکو ته د کلمو او گړنو دوه فهرسته ورکول کیږي. هغوی د کلمو او گړنو تر منځ مانا یې او منطقي تناسب او اړیکي په گوته کوي د ساري په توگه:**

***الف:* زه او زما دوست .................... تور دئ - سمه اړیکه**

***ب:* د هغه قلم ............................ یو سفر لرو**

***ج:* پغمان ښکلې ......................... لري- ناسمه مانا یې اړیکه**

***د:* توریالی باغ ............................ دره لري**

**مانایي اړیکې سره پیدا، جمله ترې جوړه کړئ**

***الف:* افغانستان.......................... راشه**

***ب:* زموږ کره ............................ سپور شه**

***ج:* په آس باندې ......................... راشې؟**

د: ته به کله ................................ زموږ هیواد دئ

* * * * *

بل تمرین:

*الف:* هغه پرون احمد .................. دواړه لاړ شو.

*ب:* زما برخه هم ........................ دې وکړه!

*ج:* زه او ته به ............................ ځې او کنه؟

*د:* ورشه خپل کار ........................ ته نه ځې؟

*هـ:* ته هم زما سره ........................ څه کار دئ؟

*و:* ولی خپل کور ........................ هغه ته ورکړئ!

*ز:* زما سره دې ............................ ته گیله کړې وه.

**۵. د جملې خالي ځایونه ډکول:** په دې تمرین کې زده کوونکو ته یو شمېر جملې ورکول کیږي. هغوی د خپلې پوهې په کچه په جمله کې مناسبې کلمی په تشو یا خالي ځایونو کې لیکي او جملې بشپړیږي.

*مثالونه:*

- زرغونې څلور منې په......... کیښودې ← (له- کار- میز- ته).
- اوږی....... کوره........ ته....... لاړه ← (باندې- له- ته- پوهنتون- به)
- ژمی د..... ضد..... دئ، ځکه چې...... سړه.... ← (وي، موسم، اوږي، هوا- راځی)
- سبزي له........ څخه ... لاسه .....← (تر- کیږي- زراعت- یې- به)
- پلار مې....یو...... له....... څخه راوړ.← (څخه- بازار- راته- کتاب- له- سره)
- زه سبا پوهنتون.......... ځم- (ته- ځو- خورم- نه)
- گل محمد..... سړی......- (دي- به- دئ- ښه)
- ته...... چیر ته....... - (چېرې- نن- تللی- وې- دي- تلل)

**۶. د ګډوډو جملو سره اوډنه او منظم کول: په دې تمرین کې زده کوونکو ته غیرمنظمې جملې ورکول کیږي. هغوی یې د خپلې پوهې له مخې سره اوډنه ترسره کوي، سم او صحیح یې لیکي.**

***د ساري په توګه:*** **(ولاړم- سره- د- ته- زه- پرون- ملګري- مدرسې- خپل) ناسمه بڼه.**

- **(زه، پرون، د خپل ملګري، سره، مدرسې، ته، ولاړم.) ناسمه بڼه**
- **سره- ماله- تا- پروسږ- په- کال- غنم- کې- لو- ؤ- لیدلي-. سمه بڼه**
- **(.......................................................)**
- **ولی- نه- خبرې- کوې؟- خو- به- ستړی- یې- نه**
- **(.......................................................)**
- **له- سره- درس ....... . تا- به- لولم- و**
- **(.......................................................)**

**۷. د جملو غزونه (ګسترش): په دې ډول تمرین کې ښوونکي یا زده کوونکي یوه جمله وایي بل زده کوونکي هغې جملې ته ادامه ورکوي، یا په بل عبارت ورکړ شوې لنډې جملې اوږدوي، په هغه باندې نورې جملې ورزیاتوي.**

***د ساري په توګه:***

- **ته کورته ځې او زه .......................................**
- **ښوونکي درس ورکوي او زده کوونکي ................**
- **د بزې وابښه خوښیږي، د زمري.........................**
- **که خدای کول موږ به ....................................**
- **د پاکستان هوا توده او د افغانستان ....................**
- **ښه خلک ښه کارونه کوي او بد .........................**

* * * * *

**احمد راغی ........**

**احمد راغی چې درس ووايي.**

**احمد راغی چې درس ووايي، ډاکتر شي، چې خلکو ته خدمت وکړي،**

**احمد راغئ چې درس ووايي، ډاکتر شي، چې خلکو ته خدمت وکړی، خدمت کول خلکو ته ثواب لري، د دنيا او آخرت گټه پکې وي.**

**۸. په دې تمرين کې جملې لنډيږې: د ښوونکي له خوا زده کوونکو ته کلمې او جملې ورکول کيږي، هغوی دغه ورکړشوی جملې لنډ وي او په اختصاري بڼه يې ليکي.**

***مثلاً:***

- **زمری او غمی دواړه زمونږ کورته راغلل: (هغوی زمونږ کور ته راغلل يا هغوی راغلل.)**
- **سپورت د روغتيا لپاره ډيره گټه لري، هر څوک بايد د خپلې روغتيا خيال وساتي.**

  **(سپورت د هر چا لپاره گټه لري.)**

**۹. د انځوريا تصوير په مرسته جمله جوړونه: په دغه تمرين کې د کتاب له انځورونو او يا هم له نورو انځورونو څخه گټه اخيستل کيږي. له زده کوونکو څخه غوښتل کيږي، چې د تصوير له ليدلو څخه مناسبې جملې جوړی او وليکي. مثلاً: د تصوير رنگ، ښکلا، ارزښت، قد- څيرې او نورو برخو په اړه جملې ليکي.**

**۱۰. په جملو کې د يوی يا ډيرو کلمو وراضافه کول: له زده کوونکو څخه غوښتل کيږی، چې په ورکړ شوی جملې باندې يو کلمه ورزياته کړي مثلاً:**

**زه مڼه خورم. (سره) زه سره مڼه خورم.**

**يا: پلار مې مسجد ته ځي. (زه هم، د جمعې، په ورځ، ورسره، يم)**

**د جمعې په ورځ چې پلار مې مسجد ته ځي زه هم ورسره يم.**

**۱۱. د ساده جملو ترکیب: په دی تمرین کې دوه لنډ عبارتونه یا جملې زده کوونکو ته ورکول کیږي. له هغو څخه هیله کیږي، چې سره یوځای یې کړي. یعنی یوه جمله ترې جوړه کړی.**

***د ساري په توګه:***

**۱. هغه سړی د ګل مکۍ ورور دی ۲. هغه سړی بزګر دئ.**

**هغه بزګر سړی د ګل مکۍ ورور دی.**

**۱۲. د ورکړ شو کلمو څخه جملې جوړول: زده کوونکو ته هغه کلمې او عبارت ورکول کیږي، چې په درسي کتابونو، او ویل شوو مطالبو کې ویلې او ورسره آشنايي ولري. هغوی له ورکړ شوو کلمو څخه مناسبې جملې رغوي.**

**او یا هم هغوی ته انځورونه او تصویرونه ښودل کیږي، چې د هغو په لیدلو سره هر یو جملې جوړې کړي. او په لیکنې بڼه یې وړاندې کړي. دغه تمرین له هغو دودیزو تمرینونو څخه دي چې په هر ټولګي کې په جمله جوړونې کې ترې کار اخیستل کیږي. مګر پام مو وي چې له (ا- څخه تر ۱۰) تمرین پورې د مخه له دې تمرین څخه کار وانخیستل شي او نه دغه تمرین وړاندې شي.**

**۱۳. د لیکنو (مکتوب) پوښتنو د ځوابونو په چوکات کې جمله جوړونه: دغه تمرین چې د نورو درسونو لکه ریاضي، تاریخ، علوم او نورو برخو په پیاوړتیا او تقویې کې ډېر اغیزمن رول لري. په دی تمرین سره له زده کوونکو څخه په کتبي توګه سوالونه کیږي، هغوی یی د یوې جملې یا څو جملو په جوړولو سره وړ ځوابونه لیکي، په همدې ترتیب سره د نورو درسونو تعامل د جملې جوړونې له درس سره په ښه توګه ترسره کیږي.**

# د لیک په زده کړه کې د املاء اهمیت

د لیک په زده کړه کې د املاء لیکل ډیر ارزښت لري. څومره چې د لیک زده کړه مهمه ده هماغو مره املاء هم په لیک کې د پاملرنې وړ بريښي. په حقیقت کې د لیک او لوست صحیح بنې املاء جوړوي. که چیرې په لیک کې املايي نیمگړتیاوې موجودې وي، نو هغه لیک د املاء له اړخه عیب لرونکی دی. برسیره پردې چې نیمگړې به وي، انشايي خطاوي به ورسره مل وي. که چېرې املاء ته پاملرنه ونه شي او په ځیرتیا سره د مطالبو مفاهیم، بنې د ټاکلي جوړښت له مخې چې توري یې په خپل ځای او غږ، ونه کارول شي، تیروتنې رامنځته کیږي. د انشاء په درک او پیام کې بدلون پیښیږي.

له همدې کبله په کار ده، چې د کلمو، جملو په لیکلو کې د تورو بنې او غږونو ته لازمه توجه وشي، ناسمه املا یا غلطه املاء د بل د لوستلو او درک کولو په افاده کې ستونزې پیښوي. د کلمو، جملو او گړنو د مانا د بدلون سبب کیږي. که چیرې موږ د (نړۍ) کلمه د (نرۍ) په بڼه ولیکو یا هم د (لرې) کلمه د (لري) په بڼه ولیکو، نو مانا یې بدلون به رامنځته شي.

داسې ډیرې املايي تیروتنې په لیکنو کې مادي او معنوي زیانونه رامنځته کولای شي.

دلیک په زده کړه کې املا لیکنه اساسي بنسټ د یوې ښې انشاء جوړوي.

تل ذهني اوریز، ویيز او لیده نیز انځورونه د املاء په مټ ترسیمیږي.

## لاندې کمزورتیاوې د املاء په لیکنه کې نیمگړتیاوي رامنځته کوي:

۱. د اوریدلو د حس کمزورتیا: لکه: په (ځاله- جاله) کلمو کې
۲. د اوریدلو د حافظې کمزورتیا: لکه: د کلمو په ځای کارونه؛
۳. د لیدنې د حافظی کمزورتیا: لکه: (حیله- هیله) کلمو کې
۴. قرینه لیکنه: لکه: په کتنه ؟
۵. سرچپه. لیکنه، لکه: په کتنه

۶. د ځیر تیا نشتوالی. لکه: په کندو – کندو
۷. فارسا لیکنه. لکه: رستم – رستم
کیدای شي چې نورې ژبنی، لهجوي، محلي، بیولوژیکي ستونزې د املاء په بدلون او اهمیت کې اغیزې ولري.

**د پښتو ژبې د املاء په برخه باید لاندې څرګندونو ته جدي پاملرنه وشي:**

۱. څه شي چې لیکي باید د صحیح او سم تلفظ له مخې یې ولیکي، په هره ژبه کې شفاهي او لیکني، د عوامو او صحیح تلفظ سره توپیر لري. مثلاً: په پښتو ژبه کې (هلک) لیکو او (الک) وایو یا په دري ژبه کې (آب) لیکل کیږي، مګر عوام یې (او) تلفظ کوي، په دی اړه باید توجه وشي.

۲. همدا ډول په املاء کې د ګرامر (صرف، نحوی) اصول او قواعد لازمي شرط ګڼل کیږي. ځینی جملې په شفاهي ژبه کې دومره لنډې شي، چې د یوې کلمې په بڼه لیکل شوي وي لکه (څیکی) چې باید د ګرامر له مخې (څه یې کوې) په ډول ولیکل شي یا په دري ژبه کې (مچم) کلمه چې اصلي املایي بڼه یې (من چه میدانم) باید ولیکل شي.

۳. دوې بیلې کلمې باید سره ونه تړل شي. لکه (تولسړي) - (لویکور) داسې ولیکل شي: (تول سړي– لوی کور) او یا هم د دوو کلمو څخه چې یوه کلمه جوړه شوي وي، سره نه بیلوو لکه (تولیمشر) چې یو ځای لیکل کیږي. بله کلمه (تولواک) په څیر چې (تول) له (واک) څخه بیل نه شي راتلاي. یا هم د (بیلتانه) کلمه د جدایي په مانا داسې (بي له تا نه) نه شو لیکلای.

۴. یوه کلمه د بلې کلمې په څیر باید ونه لیکل شي لکه: (پوښتنه) د تپوس په مانا (پښتنه) د پښتون مونثه کلمه باید سره توپیر ولري. همدا ډول د (ګوډ) او (ګډ) توپیر سره وکړای شي. د کلمو په املاء کې باید د اشتباه او غلطیو مخه ونیول شي.

۵. په پښتو ژبه کې د نفی او نهی توري (نه- مه) له افعالو څخه بېل لیکل کیږي.

لکه: نه ځې، نه کوي، نه وینې- مه وایه- مه کوه- مه ځه- مه غواړه) مګر په (نشی، نشته، مکړه، ناخلی، نکړی) په کلمو کې زیاتره په متصل ډول لیکي.

۶. پښتو توري: په پښتو ژبه کې ځنی توري شته چې هغه بیا په فارسي او عربي کې نشته، د دغو تورو کارول او د کارولو ځای پیژندنه په پښتو املاء کې ډیر ضروري او د اهمیت وړ ګڼل کیږي. د پښتو توری د دری ژبی په نسبت ورته خاصی زانګړنی ویلی شو، کنه دغه ډول توری د اردو ژبو په لیک کی هم شته.

د *(ښ) توري:* دا توري په پښتو لهجو کې د (خ- ش) د تورو په څیر هم تلفظ کوي. دغه ډول درې توري مختلف غږونه چې د ګړدودونو د اختلاف په وجه د ځینو لغتونو په تلفظ کې شته په لیک کې بیا دغه توپیر له منځه تللی، ټول یې یو ډول لیکي.

دغه توري لکه د (اوښ، لوښي، ښه) په کلمو کې ګورو، چې څوک یې یو راز او څوک یې بل ډول تلفظ کوي. کومه کلمه چې یوازې د (خ) یا یوازې (ش) اواز لري، هلته دغه توری نه لیکل کیږي. لکه: (ختهه، خاوره- شګه- شولې) په همدې بنسټ باید (خندل) په (خ) او (شندل) په (ش) ولیکو او (ښندل) په (ښ) باید ولیکل شي، چې د دری واړو ماناوې سره وساتل شي.

د *(ږ) توری:* دا توري هم ځینې پښتانه لکه (ژ) او ځنې لکه (ګ) ادا کوي، نو ځکه په هغو کلمو کې لیکلی کیږي. چې د لهجو د توپیر له کبله دوه اوازونه لري لکه (ږلی، لږ، کوږ) دغه توري هم په پښتو املاء کې د لهجی د اختلاف مخه نیولی ده او د لیک یوالی ساتي. کوم کلمات چې یوازې (ګ) یا یوازې (ژ) آواز لري، هلته بیا دا توري نه لیکل کیږي، هماغه (ګ) یا (ژ) لیکي، لکه: (مالګه- ګوره- ژبه- ژرنده).

**د پښتو *(ځ) توری:* ددې توري آواز د (ز) څخه يو څه دروند غوندی دی.**
**په پښتو ځينو کلماتوکې شته لکه د (ځه) چې دتللو امر دی، چې په پښتو(ځ) سره ليکل کيږي.**
**که چيرې دا کلمه په (ز) سره وليکل شي، نو بيا د مفرد متکلم نومځری ترې جوړيږي. همدا ډول که د (ځوړ) کلمه په (ز) سره وليکلو بيا (زوړ) د کلمې سره مشتبه کيږي، پخوا دا توري په پښتو رسم الخط کې ډير کاريده، مگر اوس يې ځای (ز) نيولی دی، لکه د (زما- زمری- زوی...) کيدای شي، ددې توري ځای (ز) ونيسي. په دغو بدلونونو کې ډير واضيح توپير نشته، فقط همدومره چې هر څوک پرې پوه شي او تر يو قانون لاندې راشي، دلته چې کومه قاعده يو څه د تطبيق وړ ده، هغه داده چې: کوم کلمات چې په فارسی ژبه کې په (ج) سره ويل کيږي، هغه په پښتو کې په (ځ) سره بايد وليکل شي لکه: جواب- جای- ځای.... ځان، ځنگل، ځوان او داسې نورې کلمی. په هغو کلماتو کې يې هم ليکل اړين دي، چې که په (ز) وليکل شي، نو له يو بل پښتو لغت سره التباس مومي لکه د (ځړيدل- زړيدل) په کلمو کې.**
**د *(څ) توری:* دا هم يو پښتو توری دی، چې په عربي او فارسي کې نشته، تلفظ يې (س) ته ورنژدې دی. او په ځينو لهجو کې يې د (س) توري پرځای کارول کيږي. که چيرې ددې پرځای (س) توري وليکل شي، نو مانيز بدلون رامنځته کيږي، لکه: د (څټ- سټ- څوک- سوک) په کلمو سره بدليږي.**
**همدا ډول د (ډ، ړ، ټ) دا درې توري هم په پښتو املا کې ډير کارول کيږي، لازم دي، چې د دې تورو د کارولو ځای او سم تلفظ وپيژندل شي.**
**که چيرې يو ليکوال په ليکلو کې او ويونکی په وينا کې، (ټ) په (ت) او (ړ) په (ر) يا (ډ) په (د)، بدل کړي دا املاء او دغه تلفظ سم او صحيح نه گڼل کيږي. په ځينو کلماتو کې د مانا د توپير لامل گرځي. لکه (وړ- ټول، ډار) چې په (ور- تول، دار) کلمو سره ونجون مومي او مانا يې بدلون پيدا کوي.**

**د *(ڼ) توري:* دا توري له (ن) څخه دروند ادا کيږي لکه: (منه، بڼ، تنۍ) يو شمېر د لرې پښتونخوا ليکوالو دغه توری د (نړ) په بڼه ليکلی دی، چې (ن، ړ) يې سره يوځای ليکلي دي. دغه ډول د (ڼ) توری ليکل ډېرې ستونزې رامنځته کوي لکه د (کونړ- نړول- نړيدل- نړۍ) او داسې نورو کلمو کې، دغه توري بايد د (ڼ) په شکل په بسيط ډول وليکل شي نه د (نړ) په بڼه چې د يو توري نوم دئ.**

**د *(و) توری:* په پښتو املا کې ځينې کلمې شته چې (و) پکې کارول کيږي، مگر ويل کيږي نه! لکه: د (غوندې- لونگی) په کلموکې چې (و) پکی نيمگړی غوندې اداء کيږي، چې د مجهول (و) په نامه ياديږي. لکه: (لور) د طرف په مانا. همدا ډول (و) د معروف (و) څخه توپير لري او کله د يوه لغت مانا لکه: (لور) چې په معروف (و) د دختر په مانا دی او په مجهول ډول د طرف مانا پيدا کوي. همدغه ډول (سور)- (سور) يا (توره)- (توره) چې هر يو جلا لغتونه دي او بيلی ماناوې لری.**

**د *(ی) توری:* دا توری په پښتو ژبه کې په پنځه ډوله دی، چې نومونه يې دادي: (ملينه يا، معروفه يا مجهوله يا، تانيثي يا، ثقيله يا). بيلگې په دی کلمو کې: (سړی (مفرد)- سړي (جمع)- مستې- خولی- واخلئ) ددغو ياگانو په بدلون سره کله يو لغت په بل لغت بدليږي او په ماناووکې يې بدلون رامنځته کيږی. لکه: په دی کلمو کې: (مېنه، مينه، غړی، غړی- شړي، شړی- وينې، وينئ). د همدې ياگانو په واسطه په پښتو گرامر کې، مفرد جمع، مذکر، مونث، فعل او نوم، غايب، مخاطب خرگنديږي.**

**که چيرې همدا ياگانې په ليکلو کې سره توپيرونه لري؛ نو (وړي) او (وړې) به يو ډول ليکو او (راځی، راځي- ښی- ښۍ) به په ليکلو کې يو ډول وي.**

**لنډه دا چې د پښتو ژبې په املا کې بايد د پښتو ټولنی ۱۳۲۱ هـ ش ۱۳۲۷ هـ ش او همدا ډول ۱۳۳۷ هـ ش نيتې پريکړې او هم د وروستيو کلونو د کوزی**

**پښتونخوا- د (باړه ګلۍ د سیمینار یا پښتو اکاډیمی پریکړې په پام ونیول شي. ددې په خاطر چې د پښتو املاء او لیک دود کې یو راز، تلفظ او ولیکل شي. په دی صورت کې به د الفاظو او کلمو یو راز لیکنه او لیکنی یوالی (وحدت) رامنځته شي.**

**د لهجو اختلاف باید په لیکنه کې داخل نه شي. سره ددی چی محمد ګل خان مومند صمد خان اڅکزی او ځینی نورو د پښتو ژبی د الفبا او املاء برخو په لیکنو کی سره بیل بیل سبکونه درلودل. ۲۷: ۳**

**_د ساري په توګه:_ (لمر، نمر، نور، میر مر) یا (خوله، خولۍ، خولې، خښله، خښلې)- همدا ډول (ژبه، جبه، زبه) د یوه لغت مختلف شکلونه دي، چې څوک یې یو ډول او څوک یې بل ډول وايي. که موږ دغه ډول بڼې په لیک کې ومنو، نو په لیک کې به هیڅکله لیکنی وحدت رامنځته نه شي. له یو ژبې څخه به د وخت په تیریدو سره ګڼې ژبې جوړې شي.**

# د انشاء او د هغې د زده کړې طریقې

دانشاء تعریف: انشاء دایجاد، رامنځته کولو، خلق کولو، روزنې او پیل کولو ماناوې لري.

د انشاء د کلمې ننۍ کارونه په پښتو ژبه کې په لومړنۍ مانا سره د ایجادولو او خلق  کولو ماناوې ښندي.کله چې وایو (د یو چا خبره او یا کلام انشاء کوو) مانایې هماغه د کلام ایجادول او رامنځته کول دي. د دري ژبې په کلاسیکو متونو کې د انشاء د کلمې انډول یا معادله کلمه (د بیری) راوړل شوې ده.

دغه کلمه د منشي گوی، کتاب په مانا کارول شوی ده. د همدې ژبې په لرغونو متونو کې د همدې مفهوم د افادی لپاره دغه کلمه ډیره زیاته استعمال شوې، چې برسیره پردې دا کلمه په لرغونو زمانو کې د (دبیرستان) په مانا چې د ماشومانو د ښوونځي (مکتب) مفهوم او مانا لري کارول شوې ده. دغه کلمه د شیخ عطار په تذکره الاولیا، د عروضی سمرقندي د (چهار مقاله) او د ابوالفظل بیهقي په تاریخ کې راغلې ده. په چهار مقاله کې داسې وایي ((دبیری صناعتی است مشتمل برقیاسات خطابي و بلاغي، منتفع در مخاطباتی که درمیان مردم است بر سبیل محاورت و مشاورت و مخاصمت)).

همدا ډول لکه څرنگه چې د مخه یادونه وشوه، انشاء د فعالې (خلاقې) لیکنې یو مرحله ده، چې په خپله د لیکلو د مهارت د زده کړې غایې هدف هم دی. د لیکلو ټول مخکني پړاوونو له مخې لیکل کلمه جوړونه، جمله جوړونه او املاء دا ټول د یوې فعالې (خلاقې) لیکنې هغه لومړنۍ سریزه (پیل) دی، چې زده کوونکي ورته چمتو کوي.

د ښوونځیو په برناموکې د انشاء رول دادی، چې په لازمو وختونوکې زده کوونکو ته د ډول ډول (متنوع) مهارتونو زده کړه کوي، ددې لپاره چې فعاله لیکنه پرې وکړای شي. لکه توصیفی لیکنه، پیښې لیکنه، خاطرې لیکل او شخصي لیکونه (خطونه) او داسې نور. مگر د یو ښوونځی د زده کوونکي د

پوهې له سطحې سره سم همدغه څلور موخې کافي ګڼل کيږي. دخلاقې ليکنې نور ډولونه لکه: ګزارش ليکنه- ژوند ليکونه (بيوګرافي)، يون ليکونه (سفرنامې) اداري ليکونه- تړونونه، د جلسو بنې، شکايتونه، نورې *ادبي ليکنې*: (نمايشنامې، فلمنامې، ادبي ټوټې، داستان) او داسې نورې ليکنې د لوړو زده کړو په صورت کې کيدای شي، د لارښوونو په لړ کې زده کوونکي زده او وليکي.

## د يو متن د ليکنې لپاره لازمې لارښوونې:

*لومړی:* د انشاء ليکلو يا ايجادولو موضوع بايد واضح او روښانه وي.

*دويم:* انشاء بايد له هره پلوه يو ښه پيل ولري.

*دريم:* په انشاء ليکنه کې بايد کلمې تکراري را نه وړل شي.

*څلورم:* په جملو کې بايد مفاهيم په تکراري ډول و نه کارول شي.

*پنځم:* د کلمو او جملو په کارولو سره بايد اساسی يا بنسټيز مفاهيم افاده کړای شي.

*شپږم:* په يو متن کې اساسي او اصلي موضوع ته داخليدل بايد په دقت او مهارت سره وي.

*اووم:* په انشاء ليکنه کې بايد تشبه، او نور ښکلايز صنعتونه چې متن ښکلی کوي لازم بريښي.

*اتم:* انشاء بايد يوه ښه خاتمه او پای ولري.

*نهم:* په انشاء ليکنه کې بايد اصلي موخه ټاکلې يا مشخصه وي.

*لسم:* په انشاء ليکنه کې ژبنی جوړښت او اصول بايد په پام کې ونيول شي او هم د جملو له پيچلتياوو څخه ډډه وشي.




## د انشاء روښونه:

د انشاء د ایجادولو لپاره له لاندې طریقو او روښونو څخه ګټه اخیستل کیږي، البته د کښنته سویې یا ټیټو ټولګیو لپاره:

- په چاپیریال کې دصحنو له کتلو، لیدلو څخه برداشت کول او انشاء رامنځته کول.
- له انځورونو څخه ګټه اخیستل.
- د تربیتي فلمونو څخه اخیستنه.
- له مختلفو کیسو، حکایتونو څخه استفاده کول.
- له تیت او پرک یا پراګنده کلمو څخه انشاء لیکنه.
- د متن (شعر، نثر) په اړه تبصرې او انشاء لیکل ترسره کیدلی شي.

د ځینو نورو ژوندیو خاطرو او سرګذشتونو په اړه انشاء لکه:

- په لاره کې مو څه ولیدل.
- ستا د کور د حویلۍ یا سرای په باغچه کې کوم ډول میوه لرونکي او زینتي بوټي شته؟
- څه ډول موضوعات ستاسې د خوښې لامل کیږی؟ او ولې؟
- کومه پیښه مو که په خپل کلي او یا ښار کې لیدلي وي یو څه پرې ولیکی!
- د خپل کوچنیوالي د لوبو د سامان په هکله یو څه ولیکئ!
- په یو مهال کې کومې سندرې پر تاسو ډیره اغیزه کوله؟ او ولې؟
- د خپل ژوند یوه خوږه خاطره ولیکئ؟

**د انشاء ځينې روشونو ته پاملرنه وکړئ:**

**۱. دوديز يا سنتي روش: په دې روش کې ښوونکی يوه موضوع غوره کوي، زده کوونکي يې ليکي. وروسته بيا څو تنه زده کوونکي خپل ليکل شوي مطلب لولي. ښوونکي هغوی ته نمرې ورکوي او يا هم يو نيم زړخوږی ښوونکی د هغو کتابچې کورته وړي. د ملاحظه شد يا وکتل شو په ليکلو سره او يا هم د جزيي غلطيو د اصلاح په توګه چې دغه کتنه د ډير قناعت وړ نه شي کيدلی، روش کاروي، په دې صورت کې زده کوونکي د ليکنې کوچنی اړتياوې هم نه شي پوره کولای. دغه کمزورتياوې ډير دلايل لري، مګر يو له عمده دلايلو څخه همدغه د انشاء د زده کړې د دوديز يا سنتي روش حاکميت دی، چې په ښه توګه انشاء نه شي ليکلای. ۷: ۸۵**

**۲. ليکني بېلګه يز (نمونه يي) روش: په نمونه يي روش سره چې د بل يا ښوونکي له بيلګې څخه زده کوونکي تقليد کوي، انشاء ليکي. په دې روش کې د زده کوونکي د خپل شوي تفکر څخه کار نه وي اخيستل شوی، يوازې له بيلګې څخه يې نقل کوي، له دې روش څخه زده کوونکی د ليکنی ډول (نوع) نه شي زده کولای. فقط يوازې تقليد کوي.**

**۳. د جملو ترکيبي روش: زده کوونکي جملې په ترکيبي توګه باندې ليکي، بيا له هغه څخه متن جوړوي مګر په يو واري ډول پيچلو موضوعاتو ته نه ورداخليږي.**

**۴. د اړيکو روش: په دې ډول ليکنو کې د زده کوونکو مخاطب تل مور، پلار، او نور دوستان او نږدې کسان وي. چې په دې ډول ليکنو کې ساختګی او ترکيبی جملې او انشاء څرګنديږي. مثلاً زده کوونکي وايي: پلار مې له بازار څخه راغی. بل بيا وايي ورور مې له بازار څخه راغی، خيږونکي په دې باور دي، چې په دې بڼې جملې جوړول بايد په ټولګي کې اصلاح کړل شي؛ تر څو زده کوونکي په آګاهانه ډول يو څه وليکي، چې د هغوی مخاطب نور آشنايان، کليوال خلک،**

اهل کسبه، کارگران او یا هم کلیوالي میرمنې وي، چې په دی لړ کې د زده کوونکو ذهنیت پراختیا ومومي.

۵. د نړۍ لید (جهان بینۍ) روش: په دی روش کې زده کوونکي د هغه څه یا مطلب په هکله لیکي، چې له هغه څخه بشپړ معلومات او خبرتیا ولري. په هغه انشاء کې د هغه نظر روښانه او څرګندوي، د خپل قضاوت له مخې یو څه ولیکي. مثلاً: ((زموږ ښار ډیر ښکلی دی)) په دې اړه خپل معلومات او قضاوت د عیني واقعیت پر بنسټ لیکي، چې دا روش ډیره اغیزمنتیا لري، ځکه انشاء لیکوونکي هغه څه لیکي، چې دی یېویني او درک کړي یې وي.

۶. د انشاء (لیکنې) د پړاوونو روش: دا روش په دې نظر یې باور لري چې زده کوونکي باید د لیکنې او انشاء څخه باخبره وي. دغه خبرتیا یا آګاهي بیا لاندې درې پړاوونه لري:

۱. له انشاء څخه د مخه پړاو

۲. د انشاء پړاو

۳. د انشاء د ترتیب او تنظیم (ویرایش) پړاو

۱. له انشاء څخه دمخه پړاو: په دې پړاو کې زده کوونکي ځان چمتو کوي، چې څه ډول خپل کار تنظیم کړی. له کومه یې شروع کړي او سرچینې باید څه وي؟ څه شی ولیکي، ځان لیکنې ته اماده کوي.

۲. د انشاء پړاو: ښوونکی زده کوونکو ته د ګډو، ګروپي، خپل منځي سلا مشورو اجازه ورکوي، ورته وایي، چې په ازاد ډول سره بحث وکړئ او یو څه ولیکئ.

۳. ترتیب او تنظیم (ویرایش) پړاو: په دې مرحله کې زده کوونکي لغتونه، کلمې غوره کوي، جملې جوړوي، پراګرافونه ټاکي، د لیکوالۍ ټکي او نښې کاروي. د زده کوونکو لیکنې ستونزې څرګندیږي، ښوونکي لارښوونی کوي او ډیر تمرینونه ورته ورکوي لیدنې، کتنې په توصیفی او غیرې توصیفي انشاء

لیکنو کې مهم رول لري. زده کوونکي باید موزیمونو، سیر علمي، پارکونو او تاریخي ځایوته یوړل شي، چې هغوی ته د ښه تفکر او تخیل زمینه برابره شي. هغوی ته د دقیقو لیدنو، کتنو او ښې مشاهدې عادت ورکړل شي، چې همدغه بیا د ښې لیکنې باعث کیدای شي. پرته له لیدنې او کتنې څخه ښه تخیل په انشاء لیکنه کې نه شي رامنځته کیدلی.

لیدنې، کتنې د ښه او معقول تخیل د روزنې لپاره شرایط برابروي. باید زده کوونکي وهڅول شي، چې په دې برخه کې ښوونکی د ښې انشاء لیکنې لپاره د هغوی استعدادونو ته وده ورکړي، تر څو زده کوونکي له خپلو لیدنو کتنو څخه په خپله یو څه انشاء کړای شي.

## د یوې انشاء لیکلو لپاره باید لاندې ټکي په پام کې ونیول شي:

لکه دمخه مو چې ولوستل د انشاء لغوي مانا ایجاد دی. یعنې د یوه نوي شي رامنځته کولو ته انشاء وایي. په ادبي کړنه کې یو نوی فکر او نوی خیال په الفاظو سره ځرګندول انشاء بلل کیږي. د ښو مناسبو کلماتو غوره کول او د الفاظو تآلیف د انشاء مهمه برخه وي.

د انشاء لیکلو پیل په دری ډوله سره ترسره کیدای شي:

۱. بې سریزې (مقدمې) په اصلي مطلب پیل کول: ددې لارې لیکوالان اکثره اروپایي ګڼل شوي دي. دوی بې له سریزې په اصلي مطلب پیل کوي. که چېرې مطلب لنډ وي او یا په زړه پورې وي، نو د مقدمې لیکنې ته څه اړتیا نشته.

۲. له اصلي مطلب او موضوع څخه دمخه یوه سریزه (مقدمه) لیکل: دغه یوه زړه پخوانۍ طریقه ده، چې ډیرو لیکوالانو کارولې ده او ځینې یې اوس هم په نظم او نثر کې کاروي. دې سریزې په پخوانیو لیکنو کې دومره دود درلود، چې په شخصي او رسمي مکاتیبو، فرمانونو کې هم لیدل کیږي.

**لیکوالو او شاعرانو به پرته له سریزې څخه انشاء نه رامنځته کوله، خپله انشاء (کتابونه، دیوانونه) به یې په جالبو سریزو سره چې د لوستونکو پام وروګرځوي ښکلي کول. په مقدمه کې به یې اسباب او علل بیانیدل. کله به له اصل مضمون څخه سریزه اوږده شوه، مګر اوس که سریزه هم لیکي له پخوانیو سره توپیر لري.**

**مقدمه باید لنډه په زړه پورې او له اصلي موضوع سره نژدې اړیکې او مناسبت ولري، چې د لوستونکو د پاملرنې وړ وګرځي.**

**۳. په انشاء لیکنه کې دریمه طریقه داده، چې پرته له مقدمې څخه او همدا ډول مضمون او موضوع له سره هم نه پیلوی، بلکې د یوه داستان منځ یا پای (آخر) د پیل (شروع) لپاره غوره کوي. وروسته له نتیجې څخه د داستان متن لیکي. لومړی یې زړه وړونکې (جذابه) برخه را اخلي او بیا نوره کیسه تماموي.**

**په دې طریقې سره نثر لیکنه ډیره تجربه او مهارت غواړي. که چیرې په ماهرانه توګه او په منطقي تناسب سره ونه لیکل شي، پایله (نتیجه) به یې ښه نه وي او اغیزې به یې لږې وي. لیکوال باید موضوع تر لیکلو دمخه وټاکي او په دی وپوهیږی چې څه لیکم؟ د څه لپاره یې لیکم؟ او د چا لپاره یې لیکم؟ کله یو ډیر څه د لیکوال په ذهن کې موجود وي. ګډې وډی خبرې یا یو تت انځور یې په ذهن کې وي. ددې لپاره چې هغه په ښکلي بڼه ترسیم کړي باید تر هر څه دمخه په هغه ځان ښه پوه کړي.**

**د همدې پوهې او ټاکلي هدف پر بنسټ کولای شي، نور هم پرې وپوهوي. د موضوع د حد او حدود له ټاکلو څخه وروسته دې په داسې طریقه خپل بیان او څرګندونې وکړي، چې په هغه کې د نورو د پوهولو خاطر په پام کې نیول شوی وي. د ترسیم او ادا طرز یې بې خونده نه وي، یعنې انشاء یې خوندوره او ښکلې وي.**

د پوهې او ادب څېړونکو د ښې انشاء لپاره ځینی اصول او مقررات ټاکلي دي. چې په لیک او وینا کې باید له هغو څخه پیروي وشي. هغه په لاندې توگه مطالعه کولای شو.

## ښه انشاء:

د ښې انشاء لپاره الفت صاحب لاندې صفتونه په گوته کړي دي

*وضاحت:* د یوې ښې انشاء یو مهم صفت دادی، چې په لیک او وینا کې باید هیڅ ډول ابهام، التباس او پیچلتیا نه وي. دا کار هلته کیدای شي، چې د کلماتو دلالت په خپله مانا باندې واضیح او ځرگند وي.

په جمله کې باید ډیر آدات، اړیکی او عوامل را نه وړل شي، نه پکې د نومځرو تشتت او ډیر تعدد ولیدل شي. د جملو سبک باید جلي وي. عبارات داسې سره اتصال او اړیکې ولري، چې هیڅ راز تعقید او التباس پکې نه وي. معترضه جملې باید ډیرې نه شي.؟

*صراحت:* صراحت دادی، چې په انشاء کې د تآلیف او ترکیب ضعف نه وي. الفاظ له موخې او مانا وو سره بشپړ تناسب ولري. د صراحت او وضاحت توپیر دادی، چې هر صریح واضیح وي، مگر هر واضیح بیا صریح نه وي. د عوامو کلام واضیح وي، مگر صریح نه وي. ځکه چې دترکیب او تالیف ضعف پکې وي.

صراحت هغه وخت په کلام کې موندل کیږی، چې الفاظ فصیح وي. د بیان طرز داسې وي چې معاني یو په بل بار نه وي. هره معنا ځانته حیثیت ولري. د فصل او وصل مراعات په ښه ډول شوی وي. د عطف او استیناف ځایونه معلوم وي.

*ضبط:* ضبط په لغت کې (انتظام، قابو، پابندي) ته ویل کیږي. په اصطلاح کې ترتیب او تنظیم ته وایه شي.

ضبط څخه دلته مقصد دادی، چې په کلام کې زیاتې او بې اړتیا برخې نه وي. د کلام د لنډوالي مراعات په ښه ډول شوی وي. تقدیم او تأخیر د ځیرتیا له

**مخې وي. د حذف( ) او اضمار په واسطه د کلام تمکین او متانت په ښه شان ساتل شوی وي.**

***طبیعت:*** **په کلام کې له تکلف او تصنع څخه کار نه اخیستل: څرنګه چې په معنا کې فصاحت ښه دی، او تفحص (په تکلف سره- فصاحت ښوونه) ښه نه ده، ادبي صنعت هم باید په طبیعي بڼې سره وکارول شي، نه په تصنعي ډول سره مقصد دا چې په انشاء کې به صنعت، ښکلا او رنګ امیزي په داسې ډول وي، چې هر چاته په طبیعي ډول څرګنده شي، نه دا چې صنعت او ښکلا به پکې بیخي نه وي او ادبي رنګ به نه لري.**

---

(۲). حذف: لرې کول- د یو تورې ایسته کول، غورځول.

اضمار: د ضمیر پټوالي یا پټول.

تمکین: دروندوالی- درناوی- مرتبه- غاړه ایښودنه- ځواک ورکونه

متانت: دروندوالی، سنجیده ګی، د خیالاتو درست والی، مضبوط والی

د الفت صاحب د وينا پر اساس: د ادب گرانوالی هم په همدغسې دقيقو مراعاتو کې دی، چې سړی بايد د هر شي اندازه وساتي او د هنر باريکۍ په نظر کې ونيسي. ادبي ذوق ډېر نازک مزاج لري، خوښونه يې (خوشحالتيا) گران کار دی.

د هنر خاوندان د عوامو په شان نه دي، چې يوازې په شنو او سرو رنگونو وغوليږي، هغوی کمال او جمال ته پاملرنه کوي.

*سهولت:* اسانتيا ته وايي. په انشاء کې د سهولت مراعات کول او په اسانه لار تلل په کار دي. اسانه لار پريښودل او په گرانه لاره تلل ښه کار نه دی.

د انشاء ليکونکی بايد کوښښ وکړي، چې د ژبې اسانه او بې تکليفه لاره خپله کړي، په پيچومو، کنډو کپرو، لوړو، ژورو سر نه شي. ځينې بلغاء ووېلی دي! پام کوئ چې په خپلو خطابو او ويناوو کې له ډېرو عميقو الفاظو ستونزمنو تعبيراتو نه، کار وانخيستل شي. د لفظ او معنا حس په اسانۍ کې ولټوئ او د لاس غوټه په خوله مه خلاصوئ.

*انسجام:* انسجام په لغت کې د اوبو جريان ته وايي. د بلغاوو په نظر هغه کلام منسجم دی چې لفظي او معنوي غوټې او پيچلتيا وې پکې نه وي، د اوبو په څير رواني ولري. د يوه او بل انشاء د روانۍ او انسجام له مخې سره توپير لري. هغه انشاء زړونو ته لاره پيدا کوي چې پورتني ټکي پکې په نظر کې ونيول شي. عام مقبوليت همدا ډول انشاء پيدا کوي.

*اتساق:* په لغت کې ترتيبولو او منظم کولو ته وايي، د معانيو ټينگ اتصال، اړيکو او ارتباط ته (اتساق) وايي. که د کلام تناسب ښه وساتل شي، جملې يو له بل سره ښې و اوډل شي او بې ربطه نه وي، نو په انشاء کې دغه صفت پيدا کيږي او د انشاء ښکلا زياتيږي.

*جزالت:* په لغت کې: ښه والی، ستر توب، لويدو او د الفاظو محکم والي، د خبرو قضاوت او روانی ته وايي. په اصطلاح کې ښې ماناوې په مناسبو الفاظو سره ادا

کولو ته (جزالت) وايي. د مانا او مقصد د افاده کولو د پاره مختلفې لارې موجودې دي.
ځيني تعبيرات سپک او رکيک وي. ځينې ښه او مهذب وی. سړی کولای شي، چې يو مطلب په رکيک او ناوړه تعبير هم پوره اداء کړي، چې هيڅ خفاء او اشتباه پکې نه وي. مگر د ادب او قلم له ژبې سره دغه راز تعبيرات نه ښايي. اديب او ليکوال بايد ښه عبارات پيدا کړي او د معنا شرافت وساتي.
*ساده گي:* کوم صفتونه چې د ښې انشاء لپاره په کار دي، هغه دا لازموي، چې بايد ليکوال د ساده سبک پيروی وکړي. شعر او ادب دې د خلکو فکر او فهم ته نزدې کړي. په ساده ډول دې انشاء وليکي. د پخوا په څير دې ډير معنوي او لفظي ضايع بی توله نه کاروي چې، عالم لوستونکي يې له پوهيدو څخه عاجزوي، ښکلې انشاء هغه وي، چې پوهيدونکي وي، نه داسې چې د عوامو له سويې څخه پورته وي او يوازې يو څو تنه يې په انشاء وپوهيږي.
الفت صاحب په دې اړه ليکي: ((ځنې وايي هغه انشاء چې ډيرې قلقلې پکې وي او ډير جلبل لري يعنی لکه رعدو برق، ځليدل او غريدل يې زيات وي د ليکوونکي عجز او تصنع ښيي، دا راز هنر ښودنه دواعظانو کار دی، په شعر او ادب کې سادگي لوی صفت دی، نه کاکه توب او طمطراق، څومره چې د چا فکري او معنوي پانگه زياته وي، هغومره يې سبک ساده او روښانه وي. مغلق او پيچيده ليکل غالباً د ليکونکي له علمي او معنوي فقر څخه پيدا کيږي)) هغه څوک چې د عبارت په ډول او سينگار پسې گرځي او د لفاظۍ څخه کار اخلي هغوی خپل معنوي فقر په الفاظو کې پوښي. نو په لنډه سره ويلی شو، چې سادگي په کلام کې ښکلا زياتوي او سرچينه يې گڼل شوې ده.

## په انشاء کې له گرامر څخه پيروي کول:

په انشاء کې بايد گرامري تيروتنې نه وي، کلمات، عبارت او جملې بايد د ژبې د قوانينو سره سم وکارول شي. په انشاء ليکنه کې هم د يو ليکوال په گرامري

کارونه کې اختلاف موجود دی، چې د پريکړو له مخې بايد منل شوې بڼې وکارول شي. ځينې کلمې لکه (راډيو، موسيقي، موضوع...) د ځينو په ليک کې په مذکر ډول او د ځينو په ليک کې بيا د مؤنث په توګه ګڼل شوي دي.
همدا ډول چې مبتدا او خبر د تذکير او تانيث له پلوه موافق نه وي، نو هلته د جملې په آخر کې څوک (دی) راوړي او څوک (ده) ليکي، لکه په دې جمله کې: دا دنيا د ځينو لپاره دوزخ دی، (ده) يو د جملې مبتداء ته اعتبار ورکوي او بل خبر ته.
حتی د يوه ليکوال په اثارو کې هم دواړه مختلف او مخالف صورتونه موندلی شو.
په ځينو داسې جملو کې: زرغونه ووژل شوه (ووژله شوه)- خبره ومنل شوه، (ومنله شوه) د ليکوالو په ليکنو کې يو ډول نه دي.
د اړونکو تورو په لحاظ هم ځينې اختلافي جملې شته، چې دژبې د قوانينو له پلوه پريکړه (فيصله) غواړي. د ساري په توګه يو ليکي: (د پښتون په کور کې) او بل بيا ليکي: (د پښتانه په کاله کې) د يوه په ليک کې ګورو، چې: (وريجې يې پخ کړې دي)، (ډوډۍ يې پخ کړې ده) بل ليکي: (وريجې يې پخې کړې دي، ډوډۍ يې پخه کړې ده) په صرفي لحاظ هم د ځينو اختلافاتو لپاره منل شوي اصول بايد په پام کې ونيول شي او سمه بڼه غوره کړای شي.
لکه (ونيوه، ونيسه، واووښت، واوريد، بيولی دی، بوتللی دی...) ۲: ۲۸
همدارنګه د لغتونو په کارونه کې هم بايد د پښتو خپل لغات راوړل شي. بې له اړتيا څخه پردۍ کلمې ونه کارول شي. موخه دا نه ده، چې ليک دې په سوچه پښتو کلمو وليکل شي، ځکه چې دا کار په دايمي او ټوليزه توګه ممکن نه دی، که چيرې ممکن هم وي خو ګټور به تمام نه شي.
د پښتو له مړو او متروکو لغتونو څخه د پردۍ ژبې هغه لغتونه چې له ډيرې زمانې څخه په پښتو ژبې کې کارول شوي وي، ډير اسانه او په مانا يې عوام هم

پوهیږي، ښه دي نسبت هغو پښتو لغتونو ته چې یوازې په لرغونو متونو کې شتون لري او مانایې ټولو لوستونکو، اوریدونکو ته ستونزمنه وي. مګر د ځینو پردیو لغتونو کارول هم لازم نه بریښي، چې مانا یې عواموته معلومه نه وي، بلکې په خپله لیکوال هم د هغو د جمعې په اصولو نه پوهیږي او په پښتو ژبې کې غلطۍ رامنځته کوي او سړی پری تیروزي. هغه پردي لغتونه چې په پښتو کې کارول کیږي، که د جمع په بڼه یې ولیکو باید د پښتو ژبې په قانون جمع کړای شي. مثلاً: عالم، عالمان، کتاب، کتابونه، درس، درسونه، درخت، درختې، زلف، زلفې، زورور، زورورو، غلطي، غلطۍ...)

که چېرې دغه ډول لغتونه د پښتو ژبې په قانون جمع نه کړو او عربي لغتونه د عربي ژبې په قانون جمع کړو، نو ممکن دی، چې ډیرې غلطۍ رامنځته شي او یا هم کیدای شي، چې د ماناو بدلون پیښ کړي. لکه: په یو کتاب کې لیکل شوي دي چې:

(د پټې خزانې د نثر جملې وړې دي او (عواطف هم پکې لږ شوی دي) په دې عبارت کې د لیکونکي موخه (عطفونه) دي چې، عربي جمع یې (عطف، عطفه) راځي او عواطف د عاطفې جمع ده.

*په انشاء کې د فعلونو کارونه:* په پښتو ژبه کې ځنې فعلونه شته، چې په بسیط او مرکب ډول دواړو بڼو کارول کیږي. لکه: ښکاره کول (څرګندول)- پیدا کول (موندل)- نښه کول (تښتیدل) په داسې *مصدرونو کې لکه:* کښېناستل، کښیناستیدل لومړی صورت د افعالو د اشتقاق لپاره بهتر دی. د افعالو ډېر تکرار هم د نورو کلمو د تکرار په څیر انشاء بې خونده کوي.

*په انشاء کې منطق او استدلال:* په انشاء کې باید د منطق او استدلال ځواک (قوت) شتون ولري. په همدې ځواک سره د انشاء متانت او معقولیت وساتل شي، مګر په ادبي او شاعرانه مضامینو کې استدلال او منطق هم باید شاعرانه بڼه ولري.

**ایجادونکي باید د ځای (محل او مقام) سره سم مناسب دلیل پیدا کړی، که چېرې څوک شاعرانه او ادبي مضامین په ملایي منطق او ځانګړي علمي استدلال تحلیل او وړاندې کړي نو هغه ده، چې د ادب دنګه مانۍ به یې نړولې وي.**

***آهنګ:*** **په انشاء کې د آهنګ مراعات کول هم اړین بریښي، ځینې توری او کلمات شته، چې د اوریدلو (سماع) له پلوه بې خونده وی او د کلام لفظي او صوتي خوند او آهنګ له منځه وړي.**

**د یوه ښه لیکلوال هنر به دا وي، چې د کلماتو په غوره والي او تألیف کې د روانۍ او ښه آهنګ لحاظ وساتل شي.**

***د لفظ او مانا تول یا (تلل):*** **لکه لیکوونکي سره باید یوه حساسه (تله) موجوده وي، چې د لفظ او مانا تول په ښه ډول وکړي، او خبره یې په کنډه برابره وي، یعنی لفظ او مانا باید مساوي وي.**

**په کلام کې د برابروالي (مساوات) خاطر په پام کې نیول شوی وي. مثلاً یو تن لیکلي دي چې:**

**(خلکو پخوانی ملا له ملا یي څخه وویست) دلته د (ملائي) کلمه دومره ښه نه ده، لکه چې د (امامت) کلمه مناسبه ده. (ملایي) که څه هم د ځینو په محاوره کې د (امامت) مانا لري، مګر په اصل کې د (امي) په مقابل کې کارول کیږي. خلک کولای شي چې یو (ملا) له (امامت) څخه لرې کړي، مګر له (ملایي) څخه یي (په هغه اصلي معنې) نه شي ایستلی. په یوه جمله کې زآیده کلمه چې په لرې کولو یي مانا ته زیان نه رسیږی د انشاء ارزښت کموي. یوه لیکوال په یوه ځای کې لیکلی وو: (رسم ګذشت شروع شو او مونږ یي د تیریدلو ننداره کوله).**

**دلته د تیریدو کلمه هماغسې ده لکه چې څوک دلیلة القدر شپه ووایي. یا لکه:**

نه پوهیږم چیرته مې په کوم کتاب کې ولیدل: (مونږ ددې حقیقت له پیژندلو سره نا آشناوو) په دغسې ځایونو کې باید همدومره وویل شي: (مونږ له دې حقیقت سره نا
آشنا وو) یا مونږ دغه حقیقت نه پیژانده- دا حقیقت مونږ ته معلوم نه و.

*په املا کې د مضمون رانبکون:* په انشاء کې لیکوال باید په داسې ډول سره خپله انشاء پیل کړي چې د ښکلو جملو او الفاظو په لیکلو سره د لوستونکي مینه د هغه مضمون له لوستلو سره زیاته کړي او د ښو کلماتو د راښکون په وجه لوستونکي تر پایه د ځان سره بیايي، لوستل نه قطع کوي او زیاته تلوسه یي د هغه مضمون پایلې او نتیجې ته وي.
*د لیکوال عقیده:* په انشاء کې د لیکوال عقیده او نظریه د اهمیت وړ ګڼل کیږي. څه چې لیکي هغه باید د هغه د زړه او ضمیر اواز وي او ټینګه عقیده پرې ولري. یو لیکوال هغه وخت نور خلک د خپلو افکارو او احساساتو تر اغیزې لاندې راوستلی شي، چې دی په خپله د عقیدې او ایمان څښتن وي، په لیک کې یې صمیمیت او صداقت موجود وي.
هغه څه چې د زړه له پاسه له یوه ساړه زړه څخه راوزي او لیکوال پرې خپله باوري نه وي، د یوه بې روحه جسد مثال لري. که هر څومره ښکلی وي د چا ورسره مینه او علاقه نه پیدا کیږي. د انشاء ژوند او مرګ په همدې (باور) پورې تړلی وي. ژوندی اثر هماغه دی چې د ایمان او عقیدې څرګندوي وکړي.

## د انشاء نظم او اوډنه:

په انشاء کې اوډنه او ترتیب ستر ارزښت لري. لیکوال باید یوه موضوع په داسې نظم او ترتیب پای ته ورسوی، چې د مضمون لړۍ بې نظمه او بې اوډنې نه وي. د تآلیف مانا هماغه ده، چې د موضوعاتو او مطالبو تر منځ مناسبت او اړیکې شتون ولري. هغه افکار چې ګډوډ لیکل شوي او یو له بله سره اړیکه ونه

**لري، هغه د تآليف ارزښت نه لري او هم د يوې ښې انشاء سم مفهوم نه شي مونددلای.**

**هغه ترتيب او نظم چې ناظمان يي د لفظ په اعتبار په يوه منظوم کلام کې ساتي؛ د انشاء ليکوونکي يي بايد په نثر کې د مانا او مضمون له پلوه وساتي. د مطالبو تر منځ اړيکې په پام کې ولري، او يوه خبره له بلې سره اړخ ولگوي، يو مطلب له بل سره نا اشناء او بې علاقې نه وي.**

***نوښت (ابتکار):*** **په انشاء کې د نوښت موضوع تل مطرح وي. نوی فکر او نوی مضمون پيدا کول يا په نوي طرز سره يوه موضوع انشاء کول د ليکوال په ابتکاري ځواک پورې اړونديږي. هغه شاعر او ليکوال چې په نوی طرز سره موضوعات ليکي خپل فکر او نظر لوستونکو او اوريدونکو ته نوی ښيي او هغوی يي نوی تخليق يا ايجاد گڼي، چې همدې انشاء ته تخليق هم وايي. د همدې نوښت په وسيله له خپلو ليدنو، کتنو څخه نوي فکرونه پيدا کوي او له عادي پيښنو نه فوق العاده پايلې ترلاسه کوي.**

**که چيرې په چا کې دغه ځواک نه وي، هغه نوی ماناوې نه شي خلق کولی، نو هغه ليکوال ته بيا مقلد او نقال ويل کيږي. نوښت د انشاء معنوي برخه ده او په معاني پورې اړه لري. يو نوی لفظ، نوی ترکيب يا نوی استعاره، تشبه د نوي فکر او نوي مضمون ځای نه شي نيولی، همدغه وجه ده چې نوی فکر او نوی مضمون ته بکر ويل کيږي.**

***تخيل:*** **دغه ځواک د نوښت تومنه بلل کيږي، څومره چې د يوه ليکوال تخيل پياوړی وي، هغومره يي د ابتکار ځواک غښتلی او زيات وي. د همدې ځواک په مرسته سړی هغه څه په خپل تصور کې اخيستلای او مجسم کولای شي، چې په سترگو يي نه وي ليدلي او نه يې په غوږو اوريدلي وي، کله چې د تخيلی قوت سره عقل هم مل شي، نو داسې ادبي آثار ترينه پيدا شي، چې زمانه يي**

نه شي محوه کولای. وايي چې: د شعر او ادب نړۍ يوه خيالي نړۍ ده، او تل په خيال ودانه وي. د همدغه خيال په مرسته لوړ فکرونه رامنځته کولای شي.
شاعرانه تخيل هغه خواږه خوندور خوبونه نه دي، چې يو شاعر او ليکوال يي په ويښه ويني او نور يې په خوب کې هم نه شي ليدلای.
*ذوق:* د ادب ګړنه هغه ځواک دی، چې د لطف او ښکلا ادراک کوي، دغه قوه په انسانانو کې په توپير سره شتون لري او هم ورته اړوي. څرنګه چې د خولې په وسيله د خوارکي څيزونو خوند معلوميږي، همدا ډول دغه ځواک د کلام خوند او ښيګڼې معلوموي.
د فن او صنعت خاوندان د دې قوت په واسطه په خپلو هنری ايجادياتو او آثارو کې زيبا يي او ښکلا پيدا کوي. تر ټولو ښه هنر بيا هماغه وي، چې له سليم ذوق څخه پکې کار اخيستل شوی وي. رسامي، نقاشي، معماري، موسيقي، شعر او ادب د انسان د ښه ذوق په مرسته پرمختګ کوي. همدا راز په نړۍ کې ښکلا او ښايست زياتوي. په شعر او ادب کې ځينې داسې ښيګڼې او عيبونه شته، چې يوازې د ښه ذوق په مرسته معلوميږي. پرته له سليم ذوق څخه بل معيار نه لري. همدغه لامل دی چې ادبي پوهه په زده کړه او ډير تعليم نه ترلاسه کيږي. ذوقی برخه د ذوق لارښونه غواړي.
*حافظه:* هغه څه چې انسان يي احساس او ادراک وکړي، نو بيا يې حافظه ځان سره ساتي. د اړتيا په وخت کې بيرته انسان ته وريادوي، نو ځکه دې قوې ته حافظه يا ذاکره وايي. دا قوه په انشاء ليکلو کې د ليکوال سره ډيره مرسته کوي. يعنی د انشاء مواد، همدا ځواک برابر وي. که دا قوه نه وي، نو څوک له خپلو ليدنو، کتنو څخه معنوی ګټه نه شي اخيستلای او د پوهې پانګه به يي ضايع کيږي.

حافظه تل ځیرتیا (دقت) ته اړتیا لري. څومره چې د یوه لیکوال حافظه د یوې موضوع جزئیات په ډېر دقت سره ثبت کړي، هغومره یې په لیک او انشاء کې د هغې موضوع بشپړ او دقیق انځور موجود وي.
څرنګه چې د یوه رسام پوره مهارت دادی، چې یوه منظره په خپل رسم کې هماغسې وښیئ، چې ډېر واړه او کوچني څیزونه او جزئیات په پام کې نیول شوي وي، د باریک بینۍ برخه زیاته وي، د یوه لیکوال هنر هم په دې کې دی، چې خپلې لیدنې، کتنې یې په پوره ډول او پوره ځیرتیا سره په خپل لیک او یا انځور کې ځای کړي وي، په حافظه کې یې دقت موجود وي.
د شخص برداشت او احساس د لیدنو او کتنو څخه توپیر لري. هنرمند چې څه اوري، ویني او پرې پوه شي، نو اغیز پرې کیږي، په حال کې یې بدلون راځي، خپه کیدل، خوښي، او تعجب کوي. د همدغه اثر پایله وي چې کتلي، اوریدلی یې وي. څومره چې یو لیکوال له یوه اثر یا پیښې څخه غمجن شي، هغومره نور هم غمجن کولای شي. په هغه اندازه چې دی خوښ اوحیران شي په هماغه کچه په نورو انسانانو کې هم تعجب او خوښي پیدا کولای شي. همدا وجه ده، چې شاعر او لیکوال تر نورو عادي خلکو ډېر حساس وي. په ډېر لږ څیز خوشحاله او خپه کیږي او د تعجب برخه یې هم زیاته وي.
*ذکاء:* چې ذهن هم ورته وایي د انسان استعداد دی، چې د علومو او معانیو ادراک کوي. د لیکوال باید دغه برخه هم نیمګړې نه وي. ددې په وسیله باید له علومو او معارف څخه ښه برخه موندلې وي. دغه ډول معنوي ځواک او استعدادونه چې په یوه لیکوال کې شتون ولري او ښه کار ورڅخه واخلي، د هغه لیک او انشاء په انساني افکارو او احساساتو ډېره اغیزه کوي، د یوه ملت په زړه او دماغ حاکمیت مومي.

دغه ډول کسان هماغه خلک دي، چې له مړینې وروسته هم د دوي معنوي واکمني او نفوذ په انساني ټولنو کې تر پیړیو پورې پاتي کېږي او اثر يي نه محوه کيږي.

**په انشاء کې د ليکوال شخصيت:**

په انشاء ليکنه کې د ليکوال اهليت، شخصيت او مېړانه ډېره اغيزه لري. هغه ليکوال چې ځانته په درنده سترگه گوري او ځان ورته کوچنی نه ايسي، هغه خپل مسؤليت او دنده د ليکوال په توگه ښه پيژني او د ټولنې په وړاندې ورته خپله وظيفه ډيره درنه معلوميږي. د همدغه احساس پر بنسټ هغه د ناپوهانو له نيوکې او ملامتيا څخه نه ويريږي، په ډاگه د ټولنې عيبونه او ښيگڼې پخپلو انشاوو کې څرگندوي.

د ليکوالو همدغه لوړتيا او شهرت د ذکر شوو صفتونو له کبله په ټولنه کې خوندي کيږي.

همدا لوړ شخصيت دی، چې د هغه په انشاء کې خپل عظمت او جلال ښيی او په خلکو کې ځای نيسي.

***د ادبي آثارو مطالعه:*** که چېرې غواړو چې انشاء مو پياوړی او تقرير مو پرته له ځنډ څخه وي، نو بايده دي چې د نړۍ د لويو ليکوالانو آثار مطالعه کړو. دغه مطالعه د زده کوونکو لپاره ډيره گټوره ده. ځکه چې ښه انشاء او د ادب ښيگڼې ځوک چا ته په درس او تعليم نه شي ښودلی، دا پوهه تر ډېره بريده د ادبي آثارو په لوستلو او مطالعه کولو سره ترلاسه کيږي.

سړی بايد د نظم او نثر ادبي متون په ځيرتيا سره ولولي، د همدې مطالعې په وسيله د ادب په باريکيو، رمزونو او ذوقي کيفيتونو ځان پوه کړي. دا پوهه د ادبي اصولو او قوانينو په زده کړه نه حاصليږي.

دا زده کړه بايد داسې نه وي، چې ليکوال يي له يو بل څخه را واخلی او خپله انشاء يي وگڼي. د انشاء معنا داده چې نقل او غلا به نه وي. د ادبی آثارو مطالعه

**لکه غذا داسې رول لوبوی، له همدې انرژۍ څخه لیکوال تغذیه کیږي، قوت اخلي، د شننو او تحلیل په نتیجه کې معنوي ځواک پیدا کیږي، چې د همدې معنوي ځواک په مرسته لیکوال فکر کوي له هغې څخه نوي او تازه فکرونه را پیدا کیږي، په ذهن کې د نوې انشاء لپاره مواد رامنځته کیږي.**

***د فکر ازادي:*** **په انشاء کې د فکر ازادي مهم توکې ګڼل کیږي. څومره چې یو لیکوال یا شاعر ازاد فکر کولی شي او له ذهني اسارت څخه خلاص وي، په هماغه کچه یي انشاء پیاوړې، له تقلید او ابتذال څخه خوندي پاتې کیږي. څوک چې مقید او محتاط روزل شوی وي، د هغه په انشاء کې ازاد خیال او تصور نه موندل کیږي. په انشاء کې باید حریت، شهامت شتون ولري. د لیکوالۍ او ښې انشاء لپاره باید د پرمختیا، دیموکراسۍ چاپېریال برابر وي. د فکر او عقل سترګې نه وي تړلې. د ژبې قلم او عقیدې ازادي موجوده وي.**

## د انشاء لیکنې ستونزې:

**۱. د ټولنې څخه لرِه پیژندنه: مثلاً یو کوچنی چې د سفر په هکله پیژن او معلومات ونه لري، نه شي کولای یو څه ولیکي.**

**۲. د خپلو افکارو په سازمان ورکولو کې کمزورتیا: ځنی زده کوونکي په دي قادر نه وي چې خپل پیام په صحیح توګه طبقه بندي کړي. د لیکنې پراګرفونه سره منظم نه شي تړلی او په یو مطلب لیکلو کې د ګډوډۍ او پراګندګۍ سره مخ کیږي. ددې لپاره چې دغه ستونزه له منځه لاړه شي، ځانګړي انفرادي تمرینونه ورته په کار دي چې ترسره شي.**

**۳. د افکارو په بدلون کې کمزورتیا: دغه ډول زده کوونکي په دي قادر نه وي، چې په خپله لیکنه کې د لیکنې اصول او قواعد مراعات کړي. بشپړ مفاهیم او ګړنې په دې اړه نه لري. چې علت یې د مطالعې نشتوالي دئ. نه شي کولای چې لازمې وړ کلمې په خپل ځای کې وکاروی او یو څه ولیکي.**

۴. گرامري او ليکوالۍ غلطۍ: د زده کوونکو په ليکنو کې گرامری سهوې او خطاوې شتون لري:

*مثلاً:* گرامري اصول او د جملو جوړښت په پام کې نه نیسي. لیک نښي پر ځای نه کاروي یا په هغو باندې چې سمې يې وليکی قادر نه وي. لازمې کلمې حذفوي، غيرې ضروري کلمی ورزياتوي، د فعل او فاعل مطابقت نه مراعاتوي. زمان او مکان په جملو او همدارنگه جملې سره نه هم آهنگه کوي. په متن کې حتی رسم الخط او د سمو ليکلو بڼې په پام کې نه نیسي، دا ځکه چې په يادوشوو برخو کې د زده کوونکو پوهه او زده کړه لږه وي، د ښې سمې انشاء ليکنی لپاره يې پوهه نا بشپړه وي.

د پورتنيو ستونزو د حل لپاره د ښوونکي له خوا زده کوونکو ته بايد زمينې برابري شي چې د شته او چاپېريال له ابزارو څخه په عملي توگه له تمرينونو څخه گټه واخلي او دغه تمرينونه بايد په انفرادي او گروپي شکل د ښې انشاء د وړتيا پيدا کولو په خاطر ترسره شي.

# د څلورم څپرکي لنډيز

د ژبې د زده کړې له پاره څلورم مهارت ليکل يا نوشته کول دي.
هره ژبه د ځانته قرار دادي سمبولونو او نښو لرونکي وي يعنی ځانته الفبا لري.هره نښه د يوه انځو په بڼه د يو ټاکلي غږ لپاره منل شوی وي.
دغه صوتي واحدونه چې په ساده او ترکيبی بڼه ليکل کيږي. دا کوچني واحدونه کلمی څرګندوی د شکلونو له ترکيب څخه يې جملې عبارتونه جوړيږي.
دغه د ليکلو مهارت په اسانه توګه په ښوونځي کې زده کيږي. لومړی د الفبا توري په ترتيب سره له ساده شکل څخه شروع کيږي.
ښوونکي يې په تخته ليکی په شاګردانو يې تکراروی. د تورو تلفظ او مخرجونو په ډله ايزه او انفرادي ډول وربانده تکرار وی. ښوونکی له يوی ورځې څخه بلې ورځې ته د ماشومانو يا زده کوونکو ودې ته پراختياورکوي.
پريږدی چې ماشوم يې په هرلاس ليکنه کوي، اختيار لري، بايد مجبور نه شی چې په دغه يا هغه لاس يبې وليکه. د خط ليکنه بايد يوه تدريجی پروسه وي. کيدای شی په مياشت او ونی او يا هم په يو کال کې زده کړای شی. په ليکلو کې دې د اروا پوهانو نظريات په پام کې ونيول شي. پيداګوژيکي مهارتونه دي ښوونکي په پام کې ونيسي. ښوونکی دې د شاګردانو خطونه له هره پلوه ارزيابي کړي. په ليکلو کې دې د رسم الخط او ليک وړانديزونه په نظرکې ولري.
هر توری په خپل نامه سره ورښودل کيږي. د تورو ازمايل شوی طريقی يعنی جوړښتی، تحليلي، ګډوله، طريقوڅخه چی د کل او جز په بڼه ښوونکی تدريس کوي.

د ژبې د زده کړې لپاره هغه اصول چې منل شوي لومړي له معلوم څخه مجهول ته-له اسان څخه و مشکل ته-له مشخص (محسوس څخه پټې (مخفي) ته-د تضاد، ورته والي (تشابه) اصل کارول اړين دي. په عمومي توګه د ليکلو د مهارت له پاره بايد هغه فعاليتونه وکارول شي چې ورته ټاکل شوي دي. مثلا: خانه خالي يا تش ځايونه ډکول، ګډې وډې کلمې او حرفونه سره ترتيبول-د يو شي له ليدو څخه او يا هم د مور، وطن، کارپه باره کې يو مطلب ليکل... او داسې نور عملي فعاليتونه ترسره کول اړين دي. د املاء د ليکلو اصول او هدف په پام کې نيول. املا په لغت کې(مهلت ورکولو-ډکولو) ته وايي. د املاء ارزښت او اهميت ته پاملرنه وشي. د انشاء د زده کړې طريقې: د يوه متن لپاره لازمې لارښوونې بايد عملي کړای شي. د انشاء ليکنې يو مثلث او د انشاء روشونه له پامه و نه غورځول شي. په انشاء کې له ګرامري، صرفي او نحوي برخو څخه د ټاکل شوو اصولو سره سم لارښوونه ترسره شي.

## د څلورم څپرکي پوښتنې

۱. ښوونکی باید د الفبا توري یا د لیک سمبولونه څه ډول تدریس کړي؟ څو تنه پرې بحث وکړئ.
۲. د اروا پوهانو له نظره د لیک په ښودنه او پیاوړتیا کې باید کوم ټکي په نظر کې ونیول شي؟
۳. د لیک یا خط د ارزیابۍ په وخت کې ښوونکي باید کوم د هڅونې (تشویق) ټکي په پام کې ونیسي؟
۴. د ژبې زده کړه په کومو درې پړاوونو کې ترسره کیږي؟ په دریم پړاو یې درې تنه خپل نظر څرګند کړئ.
۵. د املاء د زده کړې د روش څلور پړاوونه کوم دي؟ په لنډه توګه یې وواياست.
۶. د کومو اصولو په پام کې نیولو سره ژبه ښه زده کیږي؟ هر تن دې یو اصل په ګوته کړي.
۷. غیرې فعاله لیکنه کومې لیکنې ته ویل شوې ده؟
۸. له درسي کتابونو څخه بهر په سلو کې باید څو کلمې وکارول شي؟
۹. د املاء د اصلاح کولو طریقه تشریح کړئ.
۱۰. اوړۍ کور ... ځي. (باندې، ته، را) تش ځای په مناسبه کلمه ډک کړئ.
۱۱. زه سبا پوهنتون... ځم (څو، خورم، نه، ته) مناسبه کلمه ذکر کړئ؟
۱۲. کومې کمزورتیاوې د املاء په لیکنه کې نیمګړتیاوې رامنځته کوي؟
۱۳. د پښتو په کومو تورو کې لهجوي اختلاف او یووالی رامنځته کیدلی شي؟
۱۴. د پنځه ډوله (ی) ګانو شکلونه د یو یو مثال په راوړلو سره وښایاست.

۱۵. په انشاء ليکنه کې کوم روشونه کارول کيږي؟ څو تنه دې يويو روش تشريح کړي.
۱۶. د انشاء لغوي مانا څه ده؟ د بې مقدمې انشاء ليکوونکی څوک بلل شوی دی.
۱۷. د ښې انشاء ليکنې لپاره الفت استاد کوم صفتونه ذکر کړي دي؟
۱۸. په انشاء کې راښکون، د ليکوال عقيده څه مانا او تفسير لرلی شي؟
۱۹. ادبي پوهه په ډير تعليم سره نه حاصليږي. ذوقی برخه د (...) لاربنوونه غواړي.
۲۰. په انشاء ليکنه کې د فکر په ازادۍ او اهميت باندې په وار سره بحث وکړئ. او د انشاء ستونزې په ګوته کړئ.

# پنځم څپرکي

## په زده کړه کې د سمعي او بصري توکو اهمیت

**پیلیزه:**

- په زده کړه کې د سمعي او بصري توکو اهمیت، کارونه او اړوندې لارې چارې په ګوته شوي دي. په زده کړه او یادونه کې د حواسو رول او اغیزې پیرېندل کېږي.
- د زده کړې د اغیزمنتیا له پلوه درسي مواد او وسایل په پنځو ډولونو ویشل شوي دي. هغه به لوستونکي زده کوونکي وپیژني.
- د یو ادبي اثر په اړه د پام وړ ټکي او لارښوونې، منځپانګه، ډولونه او د هغو د تدریس لارې، چارې پیژندل کیږي. د ادبیاتو محتوا، ډولونه او د هغو دتدریس په اړه معلومات وړاندې کیږي.
- د ادبیاتو بنې، د منځپانګې له پلوه د کیسو د موضوعاتو په اړه څرګندوي چې، د لوستونکو د تفریح، فکري لوړتیا، اخلاقي او مذهبي معلوماتو د زیاتوالي لامل ګرځي، تشریح شوي دي.
- د موزون کلام یا د شعر د تدریس په باب لازمې لارښوونې زده کیږي، تدریس کوونکي ښودل شوي قواعد د تدریس په وخت کې په عملي توګه ترسره کوي. د شعر او شاعر سبکي ځانګړنې زده کوونکو ته راسپړي.
- یو نثري متن باید څنګه تدریس شي د ښوونکي د درسي پلانونو په اړه معلومات وړاندې کیږي.
- د پلان ډولونه په ګوته کېږي او ګټې یې پیژندل شوی چې زده کوونکی به د ښوونکی په مرسته له هغو څخه اغیزمنه استفاده

وکړي. د ورځني درس د برابرولو پړاوونه ښودل شوی دي. د اوږدې او لنډې مودې پلانونه او د هغو د موخو ټاکل تشریح شوي دي. د درسي موادو، وسایلو او فعالیتونو په اړه به لوستونکي، ښوونکي یو څه معلومات ترلاس کړي.

- لنډه کیسه د یو درسي واحد (څپرکي) په توګه لوستل، د اهدافو او فعالیتونو په اړه معلومات او د هغو په ترتیب سره ترسره کول به زده کوونکي وپیژني او ښوونکي به د هغو په باب لازم معلومات هم څرګند کړي. د عملي کار او فعالیت ګروپونه به ښوونکي جوړ او په زده کوونکو به یې عملي کړي.

د منځنۍ مودې د درسي پلان مهمې ځانګړې به په ګوته شي.

## په زده کړه کې د سمعي او بصري توکو اغیزې:

په زده کړه او آموزش کې د سمعي او بصري توکو کارونه، د مختلفو درسي پرګرامونو، او زده کړیزو موخو ترسره کولو په خاطر ډېر اغیزمن وي.

په مختلفو مضمونونو کې له دې توکو څخه کار اخیستل کیږي. په ژبه او ادبیاتو کې هم د تعلیمي او تربیتی فلمونو، تلویزوني ننداړو، پروجکټورونو، کمپیوټري او انټرنتي برنامو څخه ډېرې اغیزمنې استفادې کیدای شي. له دې وسایلو څخه په ګټې اخیستنې سره لومړی ښوونکی څو پوښتنې مطرح کوي. له ننداړې څخه وروسته بیا ښوونکی له زده کوونکو څخه د هغو ځوابونه ترلاسه کوي، په همدې توګه خپله ښوونکی بیا په عمومي ډول د ننداړې له موضوع څخه نتیجه اخیستنه کوي. په بصري یا لیده نیز میتودکې هغه زده کوونکي چې ډېر زیرک او فکر مند وي لاندې ځانګړنې لري:

۱. د انځورونو (تصویرونو) د کالب په اړه فکر کوي او هغه په خپل ذهن کې مجسم کوي.

۲. کيدای شي چې د تجسمي هنرونو، طرحوو انځورگرۍ او مجسمه جوړونې څخه ډېر خوند واخلي، کولای شي، چې په بصري روشونو کې اغيزمن واقع شي.

۳. همدارنگه، رنگونه، انځورونه او هغه بڼې (شکلونه) چې په ذهن کې رامنځته کيږي، د بصري ميتود اجزاوې گڼل شوي دي.

همدا ډول په سمعي روشونو کې چې وزن، آهنگ، عاطفي ځواک، د موسيقيت غږ او اوازونه شامل دي، چې هر يو يې په خپل ځای کې اغيزمن دی. په دې روش کې ښوونکی بايد مُدلونه، انځورونه، نندار يزي ښودنې چې د دې روش سره لازم وي چمتو کړي.

هغه له تدريس څخه د مخه او يا وروسته په عملي ډول زده کوونکو ته وښيي. دغه روش د زده کوونکو خبرتيا زياتوي، له يوه خاص مفهوم پوهيدو څخه د هغه پوهه نوره هم پراخوي. دغه ښيوه د ټينگې او ژورې پوهې او يادونې لامل گرځي؛ څکه چې ۷۵٪ يادونې په دې روش کې له کتلو، ليدلو څخه حاصليږي. ۲۵: ۳۰

د هرې موضوع د تدريس لپاره د تدريس کولو يو روش يا ميتود بسنه نه کوي، لازم دی، چې ډول ډول د تدريس کولو روشونه له يو بل سره ترکيب کړای شي. د ښوونکي هنر په دې کې دی، چې د موخو (هدف)، موضوع سره متناسب روشونه په يوه منطقي هندسه کې يو له بله سره ترکيب کړي.

سمعي او بصري روش د تدريس ډولونه راپيژني، د دې په وسيله د زده کوونکو، فهم، درک، د عيني مشاهدې پر بنسټ او همدارنگه د ژونديو او غيرې ژونديو موجوداتو درک، احساس او روزنه پراختيا مومي. سمعي او بصري اصطلاح په اصل کې د عيني واقعيتونو او حقيقتونو اساسي مفهوم افاده کوي. دغه پرنسيپ لومړی ځل يو (چکي) پوه کومينسکي رامنځته کړ. هغه د (ديداکتيکی طلايي قواعد) تر سر ليک لاندې داسې وليکل: ((ټول حسي غړي

**باید په کار واچول شي، او د خپل چاپیریال د شیانو په درک کې خپل رول ترسره کړي.))**

**د باصرې حس د لیدلو، کتلو- د ذایقې حس د ذایقې د پیژندلو- د شامې حس د بویولو د درک لپاره او د سامعې حس د اوریدلو په خاطر کارول کیږي. مګر دا باید ووایو چې د باصرې پرنسیپ نه شي کولای د نړۍ د پیژندنې او د زده کړې د بهیر یوازینۍ وسیله وپیژندل شي. د فکر د پراختیا او د زده کړې د بهیر لپاره باید له ګڼو پرنسیپونو څخه ګټه واخیستل شي. د ستونزو په حل کې باید د سمعي او بصري پرنسیپونو څخه کار واخیستل شي، ځکه چې دا مسئله د زده کوونکو د زده کړې د موضوع او زده کوونکو د دماغي پراختیا او ځانګړنو پورې مستقیمې اړیکې لري، چې زده کوونکي په کومه ذهني او رواني سطح کې واقع دي، کوم میتود به درک کړای شي. د یو ځواکمن مسلکي ښوونکي دنده ده، چې د ملي او مسلکي رسالت په پام کې نیولو سره زده کوونکو ته پورتني یاد شوي موضوعات او مفاهیم د هغو د اړتیا او علاقمندۍ سره سم د سمعي او بصري موادو په مرسته وروپیژني.**

## د سمعي او بصري وسیلو په واسطه زده کړه:

د تدریس په بهیر کې کیدای شي، چې د فلم، سلایدونو، تلویزون، انترنت او نورو وسایلو څخه استفاده وشي. مګر پته دې پاتې نه وې، چې له حد څخه زیاته تکیه کول په نندار یزو پورتنیو توکو باندې کیدای شي. د ښوونې په بهیر باندې منفي او نا مطلوبې اغیزې وښندي.

له همدې کبله باید پورتني یاد شوي لوازم د یو منظم پلان له مخې چې ړومبی ترتیب شوي وي، په کار واچول شي.

د کوچنیانو د روانشناسۍ تجربو ښودلی ده، چې ماشومان مادي ځیزونه چې محسوسوي، نسبت معنوي (ذهنی) چارو او ځیزونو ته ژر پیژني اوورباندې پوهیږي. له دې امله د تدریس کُلي قواعد په دې باندې ټینګار کوي چې کوچنیانو ته ښوونه او تدریس باید په محسوساتو باندې پیل شي، نه په معنوي او ذهني شیانو پر همدې بنسټ په تدریس کې د سمعي او بصري وسایلو شتون لازمي ګڼل شوی دی. د کارولو په وخت کې ورسره د زده کوونکو مختلف حواس هم مهاله فعالیت کوي، زده کړه اسانوي او هم د زده کړې کچې ته پراختیا ورکوي او زیاتوي یې. ښوونه او روزنه هغه وخت اغیزمنه وي، چې لاندې ټکي په پام کې ونیول شي:

۱. د زده کوونکو لپاره مختلفې زده کړیزې تجربې شتون ولري.

۲. زده کوونکي وهڅول شي او ورته لارښوونه وشي، چې فکري او عملي روش تازه او زده کړي.

۳. زده کړیز مواد باید د زده کوونکو د وړتیاوو (قابلیت) اړتیا وو او علاقمندۍ او خپل چاپیر یال پورې اړوندوي.

۴. هر زده کوونکی باید د جلا یو فرد په توګه په پام کې ونیول شي.

## په زده کړه کې د سمعي او بصري وسیلو مرستې:

د اوسني (اروا‌پوه) کور نباخ له نظره: زده کړه (د سلوک او روش بدلون څخه عبارت دی)، دا چې زده کړه څه ډول ترسره کیږي او آموزش څنګه صورت نیسي او د زده کړې عملیه څنګه آسانه کیږي. نوموړی پوه اووه توکي (عنصره) د زده کړې د عملیې، مرستندوی بللي، هغه په لاندې توګه یادوي:

۱. زمینه یا دریځ (موقف).

۲. شخصي ځانګړنې (خصوصیات).

۳. موخه (هدف).

۴. تعبیر.

۵. کړنه (عمل).

۶. پایله (نتیجه).

۷. د ماتې (مغلوبیت) په وړاندې عکس العمل.

۱. زمینه یا موقف: د ټولو څیزونو، اشخاصو او سمبولونو په ګډون چې د زده کوونکي په چاپیریال کې موجود وي.

۲. شخصي ځانګړنې: د یو شخص طبعي ځانګړنې او وړتیاوې دي، چې نسبت نورو ته له ځانه ښیي. دا وړتیاوې په جسمي کیفیت پورې اړوندي وي لکه: توانایي، حرکت، ذهني او دماغي ځواکمني.

۳. موخه (هدف): زده کوونکي شاید د یو یا، څو موخو لرونکي وي. یو هدف وي، چې ممکن هغه ته ورسیږي. او یا یو لړ نور هدفونه ولري چې د هغو په لاسته راوړلو سره په تدریجي توګه اصلي هدف ته ځان ورسوي. شاید هغه وغواړي اول نمره شي، د لوړو زده کړو سرچینه ولري، او له هغه ځایه چې سمعي موخې د شخص کړنه رهبري کوي، نو دا د ښوونکي د نده ده چې زده کوونکي وهڅوي. د هغوی د تولید، انتخاب او اهدافو لپاره وړ زمینې برابرې کړي.

۴. تعبیر: عبارت د دریځ (موقف) له رهبري کوونکې عملیې څخه دئ، چې په تیرو تجربو پورې اړوند وي، او ددې وړاند وینه، چې هر کله بعضې اقدامات ترسره شي، پایله به یې څه شي وي.

۵. عمل (کړنه): د یو شخص حرکات او وینا وې دي، او هم هغه عکس العملونه دي چې په سترګو لیدل کیږي، یو شخص د هغو عملونو څخه غوره کوي، چې ورته اړتیا لري، په بشپړه کچه هغه اقناع کړای شي.

۶. د ماتې یا مغلوبیت عکس العمل: دغه ماتې او مغلوبیت هغه وخت رامنځته کیږي چې یو سړی هدف یا موخې ته د رسیدو په لاره کې د ناکامۍ سره مخامخ شي. که چېرې د هغه کوښښ په لومړي پړاو کې نتیجې ته ونه رسیږي، نو بیا خپل عمل ته تغیر ورکوي. ډیره هڅه او کوښښ کوي، چې له ډیرو لارو څخه شاید هغه خپل هدف ته ځان ورنژدې کړي.

۷. پایله (نتیجه): د پیښو او حوادثو تائید او تکذیب چې د یوې کړنې او عمل څخه وروسته د زده کوونکي له لوري د عمل د پایلې په توګه ګڼل کیږي.

## د حواسو رول په زده کړه او یادونه کې:

د څیړنو پایلو ښودلې ده، چې مختلف حواس په زده کړه او یادونه کې ځانګړی رول لوبوي.

لاسته راغلي نتایج د هغو توپیرونه او تفاوتونه په لاندې توګه راښیی.

۱. د باصري حس (بینایي) له لارې زده کړه په سلو کې: ٪۷۵ ترسره کیږي.
۲. د سامعي حس (اوریدنې) له لارې زده کړه په سلو کې: ٪۱۳ ترسره کیږي.
۳. د لامسې حس (لمسول) له لارې زده کړه په سلو کې: ٪۶ ترسره کیږي.
۴. د ذایقې حس (څکل) له لارې زده کړه په سلو کې: ٪۳ ترسره کیږي.
۵. د شامې حس (بویایي) له لارې زده کړه په سلو کې: ٪۳ ترسره کیږي.

د همدې څېړنو له مخې زياتره زده کړه (٧٥٪) د سترګو يا بينايي حس له طريقه نسبت نورو ته ترسره کيږي. همدا ډول ٪١٣ د سامعې يا اوريدنې د حس له طريقه منل شوې. هغه څېړنې چې په دې اړه ترسره شويدي موږ ته په دې برخه کې دغه خبرتياوې راکوي:

تقريباً (٪٦٠) په منځنيو ښونځيو کې په پوهنتونو کې صرف د غوږ نيونې يا اوريدلو له لارې زده کړه کوي. ممکن يوه ناڅيزه برخه يې چې اوريدلې وي، خپل خاطر ته وسپاري. شايد په حدود د يو پر پنځم ٥/١ تر يو پر دريم ٣/١ حتی بالغ اشخاص تر پنځوس ٥٠ فيصدو پورې په متوسط ډول په دی قادر وي، چې اوريدل په ذهن کې تر دوو مياشتو پورې وساتي او کيدای شي دغه اندازه بيا تر نيمايي پورې لږ والی ومومي. په همدې اساس اوريدل يوه لږه اندازه د يادولو په برخه کې اغيزمن وي. په داسې حال کې چې مختلف حواس په زده کړه کې اغيز لري، خو تر ټولو د ليده نيز او بينايي حس تر ټولو ښې پايلې لرلی شي.

## د زده کړې د اغيزمنتيا له پلوه د درسي موادو او وسايلو ډلبندي:

ټول ښوونکي بايد په دې باور ولري، چې د زده کړې وسايل په يوه اندازه اغيزمنتيا نه لري، د وسايلو کارونه يو تر بله سره توپير لري. اغيزې هم سره متفاوتې وي- ځنې اغيزمنې او ځنې بيا ډېرې اغيزمنې او ځنې بيا لږ اغيز لري او ځنې بيا چندان اغيزمنې نه وي. ددې وسايلو د اغيزمنتيا اندازې او درجې د ښوونې او څېړنو ماهرينو او پوهانو په ګوته کړې دي. د درسي وسايلو او موادو د هر څيز د کارونې فيصدی او ځانګړنې ځانته سره جلا اغيزې لري. د ښو توپيرونو او اغيزو له مخې درسي مواد په لاندې پنځو ډولونو ويشلی شو:

١. لوستونکي او اوريدونکي او درسي مواد.
٢. ليدونکي او انځوريز (تصويري) درسي مواد.
٣. ليده نيز (مشاهده يي) درسي مواد.

**۴. نندار یز (تمثیلي) مواد.**

**۵. تجربوي او عملي مواد.**

**د اغیزمنتیا له پلوه د درسي موادو درجه بندي په لاندې جدول کې په ښه ډول کتلی شئ.**

| ګڼه | د درسي موادو ډول (نوعیت) | له درسي موادو څخه د استفادې لارې چارې | د زده کړیزو موادو د اغیزې درجه |
|---|---|---|---|
| ۱ | لوستونکي او اوریدونکی درسي مواد | لکه: کتاب، مجله، اخبار، راډیو، ټیپ، ګرامفون، انترنیټ یا جال | ۱-۲۰٪ |
| ۲ | لیدونکي، انځوریز (تصویري) مواد | ساکن انځور لکه: رسمونه، عکسونه، خوځند انځور لکه: فلمونه، سینما، تلویزون | ۲۱-۶۰٪ |
| ۳ | لیدونکی (مشاهده یي) مواد | د اصلي څیزونو لیدونکي تجربې په مجرد ډول، د اصلي څیزونو (آشیا) لیدونکي (مشاهده یي) تجربې په مشخص ډول. | ۴۱-۶۰٪ |
| ۴ | نندار یز (تمثیلي) مواد | نندار یز خوځښتونه (حرکتونه) په متحرکو وسیلو سره لکه: نانزکې، تمثیلي کارتونه، څیرې (نقاب) یا ماسک کارونه | ۶۰-۸۰٪ |
| ۵ | تجربوي مواد | په زده کوونکو باندې تجربې کول د څیزونو په مودل ، باندې، شاګردانو باندې تجربي کول د څیزونو په اصل باندې. | ۳۱-۱۰۰٪ |

## د یو ادبي اثر د تدریس په اړوند د پام وړ ټکي:

۱. ښوونکي باید د یو ادبي اثر د متن په لوستلو کې که شعر وي که نظم او یا نثر د کلمو سم تلفظ ته پام وکړي. په زده کوونکو باندې ګړنې (اصطلاحات)، لغتونه سم زده کړي.

۲. د لیکوال زمانې، هغه مهال او طرز تفکر (نړۍ لید) په هکله له چاپیریال سره سم معلومات ورکړل شي.

۳. د ادبي نوعې (ژانر)، شعر د فورم له پلوه، ادبي ایجادیات زده کوونکو ته باید توضیح کړای شي.

۴. ادبي نوعې شعر او د هغو منځپانګه، پیغام او موخې چې په هغه متن کې څرګندې شوي او راغلې وي، زده کوونکو ته شرح شي، چې زده کوونکي وړ معلومات حاصل کړي.

۵. ادبي (بدیعی، بیاني) صنعتونه له ادبي پلوه واضیح شي، چې زده کوونکي هغه وپیژني او د کارونې یا استعمال ځایونه یې په ښه توګه درک کړای شي.

۶. په متن کې راغلې متضاد، مترادف، همانیز او ډیر مانیز لغتونه او ګړنې (اصطلاحات) وپیژنی او د هغو تر منځ توپیرونه له املایي او معنوي پلوه په بشپړه توګه درک کړای شي.

۷. متن له ګرامري، نحوي اړخه ښوونکي په عملي توګه زده کوونکو ته په ګوته کوي، سمونې، او عیبونه یي ورته ښیي، د درس په پای کې ښوونکي د ارزیابي د اصولو سره سم په ګروپي ډول د زده کړې درجه او نتیجه ترلاسه کوي، زده کوونکو ته کورنی کار ورکوي او خپل درس پای ته رسوي.

## د ادبیاتو منځپانګه (ماهیت)، ډولونه او د هغو تدریس:

د ادبیاتو په تدریس کې چې عبارت له متن څخه دی (نظم، نثر، شعر) او ددې برخو ډولونه راځي، چې زده کوونکو ته تدریس کیږي. د دې برخو په تدریس

**کولو سره زده کوونکي د هرې نوعې یا فورم په ماهیت، پیام، ژبنۍ ښکلا، مفاهیمو او ځانگړو فنونو او ادبي ګړنو پوهیږي.**
**د ادبي ډولونو څخه خبرتیا مومي، د ادبیاتو له لرغونتیا، اوسني حال چې څه پکې منعکس شوي، او منعکس کیږي، معلومات ترلاسه کوي. ادبیات د زده کوونکو د عملي، فرهنګي، ذهني او فکري ودې او روزنې لپاره تدریس کیږي.**
**د هیواد د لرغونو او اوسنیو (معاصرو) آثارو سره ځوانان او کوچنیان بلدتیا پیدا کوي.**

***د ادبیاتو په اړه ډیر تعریفونه شوي دي، خو لنډ پیژن یې دادي چې:*** **ادبیات یو کلامي (ژبنی) هنر دی چې د ښکلا او زیبایي، احساس، عاطفي او انساني فکر لپاره کارول کیږي.**
**دغه کلام د تخیل په ملتیا د واقعي نړۍ سره معنوي اړیکې لري. د پورتني تعریف سره سم ادبیات چې د نورو هنرونو څخه رابیلوي او د هغو هنرونو په لیکه کې یې دروي، چې د هغو د جوړونې ابزار او وسایل له کلام (ژبې) څخه عبارت دي. همدا ډول دا تعریف ادبیات د نورو ژبنیو ډولونو (نوع) سره یې توپیر روښانه کوي. په ښکلی او زیبا ډول سره ګړنې، جملې د ژبې په ښایسته طرز سره اوډل کیږي. په دې توګه ژبه په ادبیاتو کې د احساس، عاطفي او انساني اندیښنې د څرګندتیا په موخه خدمت کوي. د ښکلا او ذوق په ملتیا د واقعي نړۍ سره معنوي اړیکی لري. نو ځکه وایو چې:**

1. **ادبیات یو کلامي هنر دی؛**
2. **ادبیات د انساني فکر، احساس او عاطفې د څرګندتیا لپاره کارول کیږي.**
3. **ادبي ډول (نوع) ښکلې وي؛**
4. **د ادبیاتو توپیر له نورو هنرونو سره د هغې ابزار یعنی (ژبه) ده؛**

۵. د نورو ډولونو سره د ادبیاتو توپیر لکه د محاورې ژبه، یا د علم ژبه، دادی، چې هغه لوړه او ښکلي وي.

۶. ادبي اثر له واقعي نړۍ سره معنوي اړیکې لري.

۷. ادبي اثر له واقعي نړۍ سره معنوي اړیکې لري.

ادبیات په ټولنه کې ژبنۍ فرهنګي پانګه ګڼل کیږي. ژبه په حقیقت کې د ټولنې د افرادو تر منځ د اړیکو یوه وسیله ده او هم دا ژبه د اړوندو ټولنو د فرهنګ ستره تکیه ګاه ده. چې په پراخې مانا سره د نورو عناصرو ترڅنګ ادبیات هم په خپله ارته لمن کې رانغاړي.

همدغه ادبیات په خپل وار سره (د انساني فکر کیفیت) لوړ وي. د ټولنې د لوړ فکر او عقل لوی څښتنان هغه کسان ګڼل شوي دي. چې د ادبې پانګې څخه برخمن وي او ادبي مطالعه ولري.

## د ادبیاتو ډولونه:

ادبیات په عمومي توګه په دوو برخو ویشل کیدای شي (شفاهي، تحریري).
شفاهي هغه ادبیات بلل کیږي، چې په یوه ټولنه کې له یوه نسل څخه وبل ته سینه په سینه په شفاهي توګه لیږدول کیږي.
روایت، افسانې، قصې او نورې ټولنیزې پیښې خوله په خوله یو بل ته ویل شوي راپاتې وي.
له بله پلوه بیا ادبیات په (ادب تاریخ، ادب تیوري، ادبـي نقـد) بانـدې ویشـل کیږي.
لنډه دا چې ادبیات ادبي پوهانو د غرض او موخې له پلوه په ډیرو ډولونو ویشلي دي.
د متن له پلوه ادبیات په (نثر، نظم) او د هغو په ډولو باندې ویشل کیدلی شي.
د زمانې له پلوه ویش- د موضوع له پلوه ویش- د لویانو ادبیات، د ماشومانو ادبیات- فولکلوري ادبیات او داسې نور ډولونه لري.
د تدریس په لړکې باید پورتني نمونې د ښوونکي له خوا زده کوونکو ته شرح کړل شي.

## د ادبي اثر فورم (بڼه) او محتوا پیژندل:

ادبې نوعې او ډولونه خورا زیات دي. دغه ادبي فورمونه د نظم او یا هم دنثر په بڼه ایجاد شوي دي. په نثر کې اکثراً (داستاني) برخه تشریح کیدلی شي، په نظم کې بیا د شعر فورمونه او کالبونه په ګوته کیږي.
داستاني ادبیات: عبارت له کیسې- لنډې کیسې، رمان او ننداري څخه دي.
نورې ادبي بڼې ځنی بیا (داستاني) منځپانګه لري، مګر د داستاني ادبیاتو برخه نه ګڼل کیږي.
دغه ګڼه اصطلاحات لکه، کیسه، افسانه، حکایت، سرګذشت، پیښې (ماجراء) متل خیالونه، مثل، اسطوره، کرکې، کړنې، خرافه، تعبیرونه، احوال او

ښرګندونې د حالاتو سره سمې، ټول په مترادف ډول په اکثرو فرهنګونو کې راغلې دي. لنډه دا چې دلته به په کیسه (قصه) او داستان باندې یو څه خبرې وکړو.

۱. قصه: دغه کیسې چې په شفاهي توګه د خلکو تر منځ دود وي، یوازې د فولکلوریکو ادبیاتو برخې ګڼل کیدای شي. دغه ډول عامیانه کیسې د وزرګارتیا په وخت کې د اوریدونکو د سرګرمیو لپاره ویل کیږي. کومې تاریخي زمانې ته اړوندې نه وي. په دې کیسو کې د عبرت لپاره اتلوالی، ښه خویونه، اخلاق او زړورتیا، د ټولنې د رواني حالت سره په تړاو کې موضوعات بیانیږي. په ولسونو کې د تفریح او ساعیتری لپاره هم ویل کیږي. په دی کیسو کې هغه پیښې چې انسانان د تاریخ په اوږدو کې ورسره مخامخ کیږي. په کیسه کې اتل او د هغه ځواکمن، غمیزې، دردونه او یو لړ هغه هیلې او ارمانونه چې انسان تل هڅه کوي، هغو ته ځان ورسوي مطرح کوي. د دې کیسو جوړښت ډیر ساده او په محاوره یي ژبې سره ترسره کیږي. ساده متلونه، دودیزې کلمې او ګړنې پکې کارول شوي وي د منځپانګې له پلوه دغه کیسې مختلف ډولونه لرلی شي.

**د منځپانګې له پلوه کیسې:**

۱. هغه کیسې چې د بهایمو (حیواناتو) له خولې یې روایت کیږي. کړنې او عمل یې د انساني احساساتو ښرګندوي کوي. مثلاً: ګیدړه دمکر، حیلې، پسه: دنیکۍ او زمری د زړورتیا له پارده، په سمبولیک ډول په دې ډول کیسو کې بیان کوي. دغه ډول کیسې ننداریزې او سمبولیکې دي لکه د کلیله و دمنه، اسیپ الحکیم، د قصه خوانۍ ګپ او داسې نورې کیسې چې د افسانو بڼې لري او په لنډه توګه بیانیږي. په دې کیسو کې اخلاقي ټکي خوندي وي. حیوانات حتی جمادات د انسان په څیر خبرې کوي او هغسې کړه وړه ترسره کوي.

۲. هغه کيسې چې په عاميانه ژبه ويل شوی وي، منځپانګه يې تر ډېره پهلواني، زړورتيا او حماسي وي. په دې کې د پاچايانو، سردارانو تيرې شوې پيښې، سرګذشتونه، د تجارانو او نوم ورکو سپاهيانو حال او احوال د حکمت او عبرت په خاطر بيانيږي.

۳. هغه کيسې چې په هغو کې دستانه وو، عارفانو، بزرګانو ديني او مذهبي حالات او روايات خوندي شوي وي لکه اسرارالتوحيد- او تذکرهالاولياء.

۴. بل هغه فلسفي عِرفاني او ديني کيسي چې په قرآن کې شته، چې د پيامبرانو قصې دي، چې په تفسير د قران او د قصو په کتابونو کې راغلي دي لکه: قصص الانبيا او داسې نور کتابونه.

۵. بل هغه کيسې دي، چې واقعي تاريخي اړخ لري او هم اخلاقي موضوعات، پيښې د پند او عبرت لپاره پکې بيان شوی وي.

۶. د ښوونې او روزنې په هکله کيسې، روايات چې په هغه کې به د علمي مسايلّو تر څنګ، سياست، طب، ستوري پيژندنه، د هيواد اداره، حکمت، شجاعت، عفت، عدالت او ځني نوری پيښې مسايّل او مطالب پکې ترسيم شوی وي. دا چې د ادبياتو د فن په اړه رنګارنګ تعريفونه شوي دي همدا ډول د دې ژبني هنر په وسيله ډير موضوعات او ټولنيز، سياسي، اقتصادي مسايل په خوږه ژبه او ښو الفاظو چې زړه وړونکي وی راوړل کيدلی شي. بله برخه د داستان ده چې په لنډه کيسه، منځنۍ کيسه او اوږده کيسه چې د تدريس په وخت کې پورتنۍ يادونې د ادبياتو او په ټوليز ډول د (متن) په هکله تشريح او توضيح کولای شو.

په وار سره له اوريدل شوې يا لوستل شوې کيسې څخه الهام اخيستل، تحليل يا شننه. په موخو د متن په وار سره خبرې کول، پيام، برداشت چې متفاوت وي، ګډونوال حق لري چې په اړوندې موضوع نظريات سره شريک کړي او يوه

منطقي پایله چې د اکثریت د درک او برداشت یوالی څرګند کړي، ښوونکي به بیا په آخره کې د پایلې د لاروښانه کولو په خاطر خپله لازمه تبصر هم وکړی.
د ادبي نوعې، فورم، ډولونه او یا د شعر فورم ډولونه په خورا دقت سره وښودل شي او هم د ژبي څلور واړو مهارتونو پورې اړوندې برخې په متن کې په عملي توګه تشریح او راوسپړل شي.
ګرامري قاعدې، اصول، نحوي لغوي برخه، فنون، استعارې، کنایې، انشاء برخه، ښه لوستل، اوریدل او د سمو لیکلو او لیکوالۍ اصول په ګوته کول د متن او ادبیاتو (شعر، نظم، نثر) په تدریس کې ډیر اړین دي.
د ساري په توګه: د الفت په نثرونو کې د هغه د (ښه حاکم) او یا (د زیارت ډیوی)، د اجمل ختک (جومات او قبر) او یا د (خاندان خولۍ) چې د بینوا نثري لیکنه ده، کولای شو پورتنۍ یادونې هره یوه په عملي توګه په دې نثرونو کې مطالعه کړو. ادبیات دغه ژبنی هنر د ژوند د ټولو اړخونو د پیاوړتیا او لوړتیا په برخه کې ښکارنده رغونکي، بشپړونکي ونډه لري. ادبیات که له یوې خوا د سرګرمیو، خوند او رنګ د زړه او ذهن د تسکین لپاره اړین خواړه ګڼل کیږي له بله پلوه د فکري ودې، د احساس او کنجکاوۍ، د ټولنیزو پیښو، تاریخ، فرهنګ د پیژندلو څرګندولو د بیان او ښکاره کولو سرچینې هم دغه ادبیات ګڼلای شو.

**پاملرنه وکړئ د یوه شعر تدریس ته!**

شعر په ادبي ژبه کې د ادبې مطالعې یو طبعي پیل ګڼل کیږي، څکه چې د ژبپیژندنې د بل هر کالب څخه شتمن او ژبني کارونه یې په فرد پورې اړوندیږي. شعر د ادبیاتو د لوستلو صرفه کوونکی لاره پیژندل شوی ده. دا جمله څه معنالری واضح شی.
شعر په مختلفو سطحو سره لوستونکي او اوریدونکی حساس روزي. په ټولنه کې د ټولو طبقو لپاره خوږ زړه وړونکی او خوندور ژبني کلام دی. شعر یو

موزون کلام وي، چې د محاوره يي ژبې او علمي ژبې په څير اطلاعات په داسې شکل سره وړاندې کوي، چې لوستونکي ته جدي تجربې وړاندې کوي.

هغه يادوي هر لوستونکي ته دغه موزون کلام په زړه پورې او ژرزده کيدونکي وي. پاملرنه وکړئ دې لاندې شعري بيلګې ته:

د موسکا ساحل ته!

لاله پــه يوه پښه دئ ولاړ د دامانونو په سر
لکــه چې پيغلې وي ختــلې د ماينونو په سر
ګلپاڼو غيږې سره ورکړې پا چهی شوه دګل
نسيمه والــوزه د غوټو غوټو زړونو په سر
مين بلــبل د هجــران غشو پــه سينه ويشتلی
خــوب يي حرام شو د غوټو د بالښتونو په سر
دوزخي تندې تــه مې کلکوتو بوماته ورکړه
ساقي سپرلی دی راځه تاوشو د خمونو په سر
زګېروو کې ځکه نوم د ښکلي په وار وار يادوم
د عشق سرود يي ماليکلی د زخمونــو په سر
داستــان د زلفو راته وايي د چوپتيا په ژبــو
هغه ګيــډۍ ګيــډۍ ببري د ديوالونو په سر
راځئ منګلولــو کې غنچې، ګلونه ورکــړو
هغــوی چې کاڼــي وروي د بهارونو پــه سر
خدايه! کاروان مې د موسکا ساحل ته ورسوه
څپې څپې شو د سرو اوښکو د سيندونو په سر

۲۱: ۷۸

**۱. تر ټولو د مخه د شعر لوستنه په لوړ غږ باید ترسره شي، د کلماتو تلفظ په دقت سره او هم هر نیم بیتی په شمېرلي توگه دانه دانه ولوستل شي چې اوریدونکي ترې مطلوب او مقصود انځورونه درک او احساس کړای شي. سمه لوستنه د مفاهیمو او تصویرونو په درک کې ښه او لازمه مرسته کولای شي. د شعر مانا وې ښې پوهیدل کیږي.**

**۲. زده کوونکو ته باید وروښودل شي، چې یو شعر څو ځل ولولي، هر ځل لوستل د شعر مانا وې او د انځورونو درک او پیژندنه اسانه کوي. د شاعر اصلی پیغام او د کارول شوو مفاهیمو او الفاظو ژورې ماناوې لوستونکي پیژندلی او درک کولای شي. شعر باید لږ تر لږه دوه ، درې یا څو وارې تکرار شي. په تکرار لوستنه کې ژبني مسآیل ښه پوهیدونکي وي.**

**۳. زده کوونکو ته لارښوونه وکړئ چې د شاعر خبرو ته ښه ځیر شي، د شعر له مانا وو څخه غافل نه شي، له حده زیات د شعر په وزن ځان بوخت او مشغول نه کړي.**

**۴. د شعر تمرین کوونکي زده کوونکي باید په لوړ غږ سره لاندې قواعد هیر نه کړي:**

***الف:* په طبعي رنگ او خوند باید شعر ولوستل شي، او له یو رنگ لوستنې (یکنواختۍ) څخه ډډه وشي؛**

***ب:* په داسې انداز شعر ولوستل شي، چې په شمېرلي ډول اوریدونکي د شاعر خبرې واوري او پاملرنه ورته وکړي.**

***ج:* په شعر کې د لیکوالۍ (لیک نښو) ته پاملرنه وشي او هغه مراعات کړي، په کوم ځای کې چې لارغه (مکث، ځنډ) لازم وي، هغه په لارغه سره ولولي او په کوم ځای کې چې ځنډ لازم نه وي، لوستلو ته دوام ورکړي، دا ډول لوستنه د ماناوو، او له اوریدونکو سره د مفهوم په درک کې بشپړه مرسته کوي.**

د پورتنيو يادوونو په پام کې نيولو څخه وروسته ښوونکی بيا يو لړ داسې اړينې پوښتنې له زده کوونکو څخه مطرح کوي، چې د شعر بڼه، منځپانګه؛ لنډه دا چې د شاعر سبکي ځانګړنې راسپړي او په پر له پسې توګه اړين معلومات زده کوونکو ته وړاندې کيدای شي.

*د ساري په توګه:*

- شعر څه ډول کلام ته وايه شي؟
- دا شعر څه ډول فورم يا کالب لري؟
- په غزل کې څه ډول انديښنې ځای شوي يا انځور شوي وي.
- د پورتني شعر منځپانګه (محتواء) ستاسې له نظر څه ده؟ په وار سره په بحث کې ګډون حتمي وي.
- د هر بيت تفسير او مانا په نوبت سره زده کوونکي شرح کوي، ښوونکی ورسره مرسته کوي.
- عمومي پيام په دې شعر کې څه شی دئ؟
- ژبنی لفظي او معنوي ښکلاوې (فنون) په متن کې په ګوته کړئ.
- ګرامري يا صرفي توکي پکې څه ډول کارول شوی دي؟
- ستونزمن لغتونه مانا کړئ- مترادف يا همانيزې کلمې، ضد لغتونه، ګړدوديز جوړښتونه يا ترکيبونه پکې وښياست؟

په آخر کې ښوونکی خپلې تجربې او خبرې د موضوع د پوره سپړلو په موخه له زده کوونکو سره شريکوي او پاتې وړ توضيحات وړاندې کوي. د ادبياتو په تدريس کې چې ټولو مهارتونو ته پکې د پرمختيا زمينې برابريږي، ښوونکی بايد زده کوونکي، د چاپي رسنيو، اخبار، مجلې ادبي رسالو او نورو ننداريزو ليدلو، لوستلو ته وهڅوي.

په آخر کې د ارزيابۍ په موخه له زده کوونکو څخه پوښتنې او ناويل شوي اړوند موضوعات له زده کوونکو څخه يو له بله بشپړوي او لازم تشريحات

**ښوونکی هم ورکوي. مثلاً: په راغلو معلوماتو کې د لوړ شعر په اړه دا څرګنده نه شوه چې دا ذکر شوی شعر په کوم زماني، مکان او د کوم شاعر په څه ډول اندیښنو پورې اړوند ګڼل کیږي او د څه ډول شرایطو زیږنده یا محصول يي ګڼلی شو؟ کیدای شي په دې اړه وروستۍ خبرې ترسره شي او د شاعر د ویلو انګیزه څه نا څه څرګنده شي.**

## د نثر د تدریس په برخه کې یوه کوچنی بېلگه:

په وار سره په ټولگي کې لوستل کیږي. هر مهارت ته پکې یو څه دودې ورکولو شرایط او زمینې د ښوونکي له خوا برابریږي. د ساري په توگه:

### بیگناه بندي

پریږدئ دا بیگناه بندی پریږدئ.

مه ویریږئ، د ده په آزادولو کې هیڅ خوف او خطر نشته، فساد او شرارت له ده نه پیدا کیږي. د ده بندي کول لویه گناه ده.

دا هغه یوسف دئ، چې د بې گناهۍ په سبب په زندان کې لویدلی دئ.

که دی له زندانه را ووزي، ستاسې آینده سنجولی شي او ستاسې د بلې ورځې غم خوري. پریږدئ دا بېگناه بندي پریږدئ.

که دی خلاص شو ستاسې انتظام به په ډېر ښه شان وکړي.

ستاسې وږي به ماړه کړي، ستاسې بربنډ به پټ کاندي.

تاسې دغه ښکلی موجود په تورو ځاگانو کې مه غورځوئ.

په زندانو کې یي مه اچوئ.

په لیوانو او پړانگانو یي مه خورئ،

پریږدئ دا بیگناه بندی پریږدئ.

دی به ستاسې دگډووډو اوپریشانو خوبونو صحیح تعبیرونه وکړي.

ډیرې سختې مبهمی او مجملې غوټې به پرانیزي، دی د راتلونکې حال پیشبینی کولی شي.

د طبیعت په رمزونو او اسرارو پوهیږي. د جوي او فلکي اوضاعو اقتضاآت ور معلوم دي. پریږدئ! دا بیگناه بندي پریږدئ.

د ده په آزادۍ باندې علم او پوهه زیاتیږي، وطن رڼا کیږي، ړانده بینا کیږي. ۴: ۱۰۹-۱۱۰

دی له خپلو جفا کارو ورونو سره هم ښه سلوک کوي، دی ډېر پیچومي اوارولی شي، ډېرې کړې لارې سمولی شي او ډېر مشکلات حل کولی شي.
ما خوب لیدلی چې دا بندي خلاصیږي، او د سلطنت په کُرسۍ کښېني.
ښه فکر وکړئ، دا بندي څوک دئ؟
پس له ډېره فکره وایم! فکر دئ فکر!
د پورتنۍ ادبي پارچې په لوستلو سره چې اوریدونکي ورته غوږ نیسي، مفاهیم درک کوي، د تلفظ ډول پیژني او زده کوي یي، د کلمو، لغتونو، ګړنو او جملو په لوستلو او سم ادا کولو په وار سره د ښوونکي په مرسته زده کوونکی هغه څلور مهارتونه په عملي بڼې سره تمرین کوي چې د مخه مو د هغه تیوریکي او نظري برخې تشریح کړي دي.
د غوږ نیولو څخه بیا د انشاء تر پیاوړتیا او ودې ورکولو پورې، په مختلفو پړاونو کې راوړل شوې ادبي ټوټه او یا دې ته ورته نورې ادبي نثري برخې د ښوونکي په لارښوونه د شاګرد محورۍ د میتود پر بنسټ راسپړل کیږي او د خپل درس ټاکلې موضوع ته انکشاف ورکول کیږي. د هر پراګراف د متن تفسیر او مانا کیږي.

هنري راوړل شوی نثر تحلیل کیږي. ژبنۍ هنري اړخ، سیاسي او ټولنیز اړخ او لیکوال یا د ایجادونکي موخې او پیام چې لوستونکو اوریدونکو ته یي ورکوي څېړل کیږي.
ښوونکی ازاد بحث ته زمینه برابروي او انګیزه لرونکې پوښتنې ترسره کوي.
تر لازم او ګټور بحث او شننې وروسته ښوونکی باید په خپل وار سره په لاندې ټکو رڼا واچوي.

- د اړوند هنري ادبي پارچې د ټولنيزو او سياسي شرايطو درک: په کوم وخت او کوم ټولنيز سياسي نظام، چاپېريال او شرايطو کې رامنځته شوی دی؟
- د ادبي اثر اړيکې د ټولنيز ژوند سره: آيا د هنري اثر پيل، او مختلفې برخې او پای د خپل وخت د ټولنيز ژوند سره اړخ لگوي آيا د هغې ټولنې هنداره کيدای شي يا له هغې ټولنی سره سمون لري؟
- د ادبي اثر هدف او پيغام: ليکوال يا هنرمند څه وايي، له څرگندونو څخه هدف څه شی دئ. په هنري ادبي آثارو کې اکثراً د هدف او پيغام برخه يو څه تته او په هنري ژبه بيانيږي. لکه په پورتني راوړل شوي متن کې چې د ازادۍ او خپلواکۍ پيغام مطرح شوی دی. په دې برخه کې ښوونکی يو لړ ارزيابي کوونکې پوښتنې مطرح کولای شي، چې دغه پوښتنې کيدای شي څو اړخيزې گټې ولري.

د متن يانثر په تدريس کې ښوونکی بايد د څلوروواړو مهارتونو برخې په لازمو شيبو کې په عملي توگه په زده کوونکو ترسره او انشاء، تلفظ، لوستنه او ليکنه ورباندې تمرين کړي. په انفرادي او گروپی ډول هغوی ته دنده ورکړي، او بيا يي په ټولگي کې د ټولگي تر مخ څرگندونې ترسره کړي. دغه ډول تمرين او مشق به له گټې خالي نه وي.

# د ښوونکي درسي پلانونه

## درسي پلان:

پلان په لغت کې تدبير، سنجش او هغې هوډمنتيا ته ويل کيږي، چې د يوه کار سرته رسولو په خاطر يي يو شخص ترسره کوي. په اصطلاح کې هغې ذهني نقشې، پلان او طرحې ته وايي، چې يو ښوونکی يې د خپل تدريس د منظم والي او د خپل کار د پړاونو لپاره مخکې له تدريس کولو څخه په پام کې لري او يا د هغو مطالبو او موضوعاتو چې له پروگرام سره يې سمون ولري يوه ليکنۍ نقشه او پلان جوړوي. درسي پلان لاندې ډولونه لري!

*الف:* ورځنی، ساعت وار درسي پلان.

*ب:* اونيز (هفته وار) درسي پلان.

*ج:* مياشتنی درسي پلان.

*د:* کلنۍ درسي پلان چې د هر سمستر لپاره (تعليمي نصاب او ښوونيزو مفرداتو) له مخې ترتيب او جوړيږي.

د يو درسي پلان گټې:

*لومړی:* د پلان له مخې د پيچلو او مغلقو مفاهيمو تشريح او توضيح کول.

*دويم:* د تدريس لپاره د اغيزمنو مختلفو روشونو ټاکنه.

*دريم:* د زده کوونکو برخمن کول په درسي فعاليتونو کې او د هغو لارې چارې.

*څلورم:* د ښوونکي يا اموزگار سره د درس د هدف په ترلاسه کولو کې مرسته.

*پنځم:* د ښوونکي سره د درسي موادو د اړتياوو په چمتو کولو او برابرولو کې مرسته.

*شپږم:* زده کوونکو ته دښه اوګټور درس پربنسټ دښوونکي باور او اطمينان حاصلول.

همدارنگه د کار پلان، د درسي پلانونو ليکل، ياداشتونه، طرحې او داسې نور چمتوالی د اوږدې مودې يا دوري لپاره بشپړ اموزشي يا تدريسی پلانونه وي.

دا هم بايد ووايو، چې هر درسي پلان يوه انفرادي طرح وي، چې د يو درس او يا درسي ساعت لپاره جوړيږي.

هر درس معمولاً د یوه څپرکي یوه برخه وي، همدا ډول هر فصل په څو برخو او سرلیکونو او (درسي ساعتونو) باندې په جلا ډول ویشل کیږي. هر درس د ځینو عنوانونو لرونکی وي، چې د یو ټاکلي واحد برخې به وي، او د یو لړ استعدادونو او مهارتونو لرونکی وی چې زده کوونکی باید هغه ترلاسه کړي.

د ثانوی دورې ښوونکي باید خپل د کار پلانونه د اصلي مضامینو له رشتې سره سم او فرعي مضامین د تدریسولو په بهیر کې ورته برابر کړي. د درسي پلانونو چمتو کول یوازې د تدریس کوونکو دنده نه وي، بلکې د ټولو ښوونکو له دندو او وجایبو څخه ګڼل کیږي. ښوونکي باید ټول ترتیب شوی پلانونه د اړوندو ټولګیو او مضامینو له مخې چې په جلا جلا توګه ډلبندي شوي وي، په دوسیو کې کښیږدي. دغه پلانونه چې په دوسیه کې ایښودل شوي، تل د تدریس آموز (Teacher Educator) لارښود (رهنما) (Mentor). مدیر، د مکتب آمر او یا اداري له خوا چک او کتل کیږي او بیا یې اړوند ښوونکی یا تدریس آموز کاروي. درسي پلانونه کیدای شي په یوه فورمه کې ترتیب او په آسانه توګه وکارول شي او آموزګاران باید له هغو سره آشنایي او عادت پیدا کړي. درسي پلان د هغو فعالیتونو، او زده کړیزو موخو، درسي محتوا او د زده کوونکو ځواکمنۍ سره سم په یو ټاکلي زمان کې د یو مشخص مضمون لپاره جوړیږي. یا په بل عبارت سره درسي پلان د ښوونکي لپاره د یوه لارښود په توګه چې ټول درسي فعالیتونه د اړوند درس په اړه پکې خوندي شوي وي او د یو مرستندوي حیثیت لرلی شي.

د درسي پلان په هکله ډیرو علماوو خپل نظریات او تعریفونه ترسره کړي دي. پاملرنه وکړي یو څو په لاندې ډول وړاندې کولای شو: ۳: ۲۳

a: د کازول (Caswell) تعریف: (تعلیمي پلان او پروګرام عبارت له ټولو هغو کړنو او فعالیتونو څخه دی، چې د آموزګارانو او څارونکو له خوا ترسره کیږي).

b: د سایلو او الکساندر تعریف: ((پلان عبارت له هغو فعالیتونو څخه دی، چې د مکتب تر څارنې لاندې د مطلوبو پایلو (نتیجو) په ترلاسه کولو سره په داخل او بیرون له مکتب څخه اجراء کیږي)).

د یوه درسي پلان په جوړولو کې باید لاندې ټکو ته پاملرنه وشي:

۱. ښوونکی باید د یو نظام او سیستم اړتیا وپیژني، چې د هغې له مخې کولای شي خپل اغیزمن تدریس وکړي او خپله درسي مطلوبه ځواکمني له زده کوونکو سره په تماس او تدریس کې څرګنده کړي.
۲. ښوونکي به ددرسي پلان د چوکات توکي (عناصر) او دهغو کارونه او تطبیق زده کړي.
۳. ښوونکي به ددې ځواکمني ومومي، چې د درسي پلان مختلف توکي د هغو اړیکی، طرح، درسي پلان پلی (تطبیق) او تعریف کړي.
۴. ښوونکی به ددې ځواکمني او وړتیا (قابلیت) ولري، چې د اوږدې مودې، او لنډې مودې د تدریس پلان طرح، وړاندې او معرفي کړي.
۵. ښوونکي به ددې توانايي ولري. چې (درسي واحد) د درس تنظیم او ترتیب د میکانیزم په توګه وپیژني.
۶. ښوونکی به ددې ځواکمني ولري، چې په یو (درسي واحد) کې د عناصرو تر منځ اړیکې تشخیص کړي.
۷. ښوونکی به ددې توان ولري، چې د ورځني پلان په طرح او جوړولو کې لاس ولري او هغه تعقیب کړي.
۸. ښوونکي به ددې ځواکمني ولري، چې په درسي پلان کې ځای شوي توکي او پدیدې چې د یو لړ زده کړیزو فعالیتونو اجراء کول دي چې د زده کوونکو لپاره سنجول شوي هغه ترسره کړي او له هغو څخه ګټه واخلي لکه څنګه چې په دې لاندې درسي پلان کې لیدل کیږي:

## درسي پلان

**درسي واحد (څپرکی) ..........**

**د درس سرلیک (عنوان)........**

**مضمون یا موضوع:...... د ښوونکي نوم:**

**نېټه:.........**

II. **د عمومي هدف څرګندول.............**

III. **د درس خصوصي هدفونه..............**

IV. **بنسټيز مطالب شاید په سریزه کې شامل وي او یا د یوې ضمیمې په توګه راوړل شي.**

V. **د ښوونکي د فعالیتونو لړۍ:**

**۱.**

**۲.**

**۳.**

**۴.**

**۵.**

VI. **د زده کوونکو د فعالیتونو لړۍ:**

**(۱) ...............**

**(۲) ...............**

**(۳) .............**

VII. **د اړتیا وړ موادو معرفي کول:**

VIII. **د درس د ارزولو کړنلاره:**

IX. **د اوږدې مودې ارزول (ارزیابي):**

X. **لنډیز شاید دلته راوړل شي او یا هم د یوې ضمیمې په ډول راوړل شي:**

XI. **د درسي موادو سرچینې او اخځونه:**

# ورځنی درسي پلان

نېټه ( / /۱۳۸۹

د ښوونکي نوم: (...............) موضوع: (...............)

مضمون: (...............) خت: (...............)

د زده کوونکو شمېر: (...............) هدف: (...............)

| موضوع | موخې | فعالیتونه | درسي مواد | ارزونه یا (ارزیابی) | وخت |
|---|---|---|---|---|---|
| دخوشحال بابا پیژندنه | زده کوونکی وکولای شي، چې د خوشحال بابا په هکله معلومات، او څرګندونې وکړي. | – د درس ورکولو لپاره د ښوونکي چمتوالي – ښوونکي له زده کوونکو څخه پوښتنه کوي چې د خوشحال بابا په اړه څه پوهیږي؟ – د زده کوونکو له خوا سم ځواب ورکول. | تخته، تباشیر، درسي کتاب، چارتونه او رنګه مارکرونه | – د زده کوونکو له توضیحي ځوابو څخه ارزونه. – په ځواب ورکولو کې د زده کوونکو برخه اخیستنه. – له زده کوونکو څخه لنډې پوښتنې کول. | ۲۰ دقیقې |
| د هغه مختلف شعرونه | –زده کوونکي وکولای شي د خوشحال بابا د شعر مختلف فورمونه شرح کړي. | – د یوې شعري بېلګې ورکول او د هغې پیژندنه د یو ډله زده کوونکو یا ګروپ له خوا.... – زده کوونکي وروسته له مطالعې او ګروپي بحث څخه د اړونده شعرونو سره په ګوته کوي او څرګندوي یې. – ښوونکي په دې اړه بشپړونکي توضیحات وړاندې کوي. | چارتونه او د هغه د کلام یا شعر بیلګې وړاندې کول | – د فعالیتونو ارزونه په ګروپي بحثونو کې د زده کوونکو برخه اخیستنه | ۲۰ دقیقې |
| د درس د موضوع لنډیز | – د درس موضوع په ذهن کې ځایول او هغه سم زده کول | – د ښوونکي لنډ لکچر او د لنډو پوښتنو طرح کول له | – تخته – تباشیر – او یا نور وسایل | – د پوښتنو او ځوابونو په لړ کې ارزیابي کول | ۱۰ دقیقې |

| | | | زده کوونکو او ګډونوالو څخه | یا ضبطول | |
|---|---|---|---|---|---|
| | د مقالو او لیکنو ارزیابی په راتلونکي ورځ کې د ښوونکي له لوري ترسره کیږي. | - د اړتیا سره سم نور فعالیتونه | - د خوشحال بابا د سبک په اړه خبرې چې د (۳) صفحو په شاوخوا کې وي | - د خوشحال بابا ښه پیژندنه او د هغه د غنایي شعر په هکله معلومات لرل | کورنۍ دنده ورکول |

## د ورځني درس د برابرولو پړاوونه:

**د ورځني درس د برابرولو پړاونه او ځینې ټکي:**

***لومړی:*** د درس د موضوع ټاکنه.

***دویم:*** د یو درس ورکول د یو درسي ساعت لپاره او د هغه زده کړیز فعالیتونه او ځانګړې موخه ټاکل.

***دریم:*** په ټولیزه توګه د موضوع او مفاهیمو شننه او د مطالبو څرګندتیا چې د جزیي یا څرمه هدفونو او تدریس د سلوک سره مرسته کولای شي.

***څلورم:*** په ترتیب سره د راوړل شوو سر لیکونو د موخو څرګندول.

***پنځم:*** د جزیي او کلي هدفونو بیانول د پوهې د کچې، شرایطو او ظوابطو سره سم په منظم ډول له ساده څخه د ستونزمن په لور برابرول او څرګندتیا.

***شپږم:*** د زده کوونکو ړومبنی سلوک او د پوهې څیړل.

***اووم:*** د زده کوونکو د واقعي ارزونې او د زده کړیز نوي فعالیت او د زده کوونکو د ځواکمنی لپاره د نوی درس د پوښتنو برابرول او ترتیبول.

***اتم:*** شننه او وړاندوینه د لومړی زده کړې ګام او د پایلو د ارزښتونو یا (د درس د پیل نقطې).

***نهم:*** د ارزښت له مخې د پړاوونو برابرول، وړاند وینه او د محتوا وړاندې کولو لپاره لاندې ټکي په پام کې نیول کیږي.

***الف:*** د چمتوالي مرحله:

په دې مرحله کې لاندې برخې شامليږي:

- د ښوونکي چمتوالی: دا طبيعي خبره ده، چې د هر کار په سرته رسولو کې يو لږ آماده ګي او تياری ته اړتياوي. د تدريس چارې هم له دې اماده ګې او قانون څخه مستثنا نه دي. ښوونکي مجبور دی چې دغه تياری ولري. ښوونکي بايد په دې وپوهيږي چې څه؟ په کوم ټولګی کې تدريس کوي. ۱۳: ۸۰

هغه بايد څه ووايي له کومې يي را پيل کړې. کومو هدفونو ته تحقق ورکړي. څه ډول په ټولګي کې يوه انګيزه رامنځته کړي، چې د درس ترپايه د تدريس بهير اغيزمن کړي، چې په يادونه او زده کړه کې مرسته وکولای شي. څنګه خپل درس پای ته ورسوي؟

- د تدريس وسايل بايد برابر کړل شي: ښوونکی لږو ډير د تدريس په بهير کې ځنو توکو ته اړتيا لري پرته له هغو څخه درس په اغيزمن ډول صورت نه نيسي. دغه وسايل ممکن تباشير، تخته، مارکر، کاغذ، کمپيوټر، فلم، ټيپ ريکاردر، پروجکتور او داسې نور وسايل وي، چې په تدريس کې مرسته کولای شي. د هغو د شتون په صورت کې زده کړه اغيزمنه کيږي. د ساينس د مضمون د پاره شايد لابراتوار او ځنې نور پرمخ تللي وسايل وکارول شي.

ب: د زده کړې د ښکاره هدفونو د پيژندنې پړاو:

ښوونکی وروسته له دې چې ښه ډاډمن شو، د زده کوونکو چمتوالی وينې او بيا له هغو سره د نوي درس موضوع شريکوي او د درس د معرفی په لړ کې هغه غوښتنې او هيلې چې له درس څخه يې لري په ښکاره ډول توضيح کوي. د

درس معرفي باید دزده کوونکو د پیژندنې سره په اړیکه کې ترسره شي، درس زده کوونکي د پراخو تجربو او هدفونو سره آشنا کوي.

په دې شرط چې د درس زده کړیزې موخې (هدف) په ساده، په روښانه او مشخص ډول د هغو لپاره څرګندې شي.

ج: د درس ورکولو پړاو:

په دې پړاو کې ښوونکی باید د خپلې ټاکلې درسي منځپانګې د وړاندې کولو ډول په ګوته کړي.

هغه باید درس له کوم ځایه څنګه پیل او په کوم ځای او چیرته یي ختم کړي.

په دی مرحله کې هغه څه چې ښوونکی یي باید په پام کې ولري، هغه دادي، چې: له زیاتو غیری ضروری اوګدو وډو خبرو څخه ډډه وکړي. ښوونکی باید زده کوونکو ته دا وخت او فرصت ورکړي چې هغوی په خپله د درس په انکشاف کې برخه ولري او د زده کړې په بهیر کې فعال وي.

د: د لنډیز (خلاصه) او نتیجه اخیستنې پړاو:

په دې مرحله کې ښوونکی دا معلوموي چې ویل شوی مطالب د زده کوونکو په ذهن کې ځای شوی او هم یوه ټولنیزه جمعبندي کوي چې زده کوونکي به هم په دي نتیجه اخیستنه کې برخه لـري. ښـه بـه دا وي، چــې پــه دې نتیجــه اخیستنه کې په خپله زده کوونکي ونډه ولري او په آخره کې ښوونکی د هغوی نظریات د خپل نظر په وړاندی کولو سره بشپړوي. ښوونکی دا هــم معلومــوي چې ټاکلو موخو ته زده کوونکي رسیدلی دي اوکنه!

ښوونکی د خپل تدریس اغیزې ارزوي، چې اغیزمنه زده کړه زده کوونکو ترلاسه کړې ده؟ آیا خپلو وړتیاوو او موخو ته په عملي توګه رسیدلی دي؟

هــ: د کورنۍ دندې د ورکړې او درس وروستی پړاو:

**په دې پړاو کې ښوونکی د زده شوو مطالبو اړیکې د زده کوونکو د واقعي ژوند سره په اړیکه کې د نورو تمرینونو په ورکولو سره چې له مدرسې څخه بهر وي، د کورنۍ دندې په توګه ورکوي.**

**پاملرنه وکړئ دې لاندې جدول ته:**

| ساعت | ټولګی | مضمون | درسی موضوع | د درس حجم | درسی فعالیتونه | وخت | موخې | میتود یا اصول | درسي مواد |
|---|---|---|---|---|---|---|---|---|---|
| ۱<br>۲<br>۳<br>۴<br>۵<br>۶ | | | | | ***لومړني فعالیتونه:***<br>سلام اوله زده کوونکو سره د احوال پوښتنه کول:<br>۱. د زده کوونکو د ټولګي نظم او ترتیب او کتابونولیدنه!<br>۲. د حاضرۍ اخیستل!<br>۳. د کورنۍ دندې کتنه!<br>۴. د تیر درس ارزونه او نوي درس سره اړیکي!<br>***مرکزي فعالیتونه:***<br>۱. د تختې پرسر د درس د سرلیک (عنوان) لیکنه په روښانه توګه.<br>۲. د کتاب له مخې د ښوونکي له خوا د درس لوستل یا قرائت کول.<br>۳. په اهدافوکې درس باید د پوښتنې په ډول ولیکل شي اوله زده کوونکو څخه پوښتنې ترسره شي.<br>***وروستي فعالیتونه:***<br>۱. د ښوونکي له خوا د لکچر لنډیز.<br>۲. د موخې سره سم د نوي درس ارزونه.<br>۳. کورنۍ دنده او په پلان کې بدلون. | | زده کوونکي باید په آخر د درس کې وپوهیږي<br>یاد شوي فعالیتونه ۹۰٪ ۸۰٪ ۷۰٪ سم ترسره کړي | سوال ځواب او لکچر | تخته، تباشیر، کارتونه، ډول ډول مارکر، نقشه او یا مرستندوی توکي او انځورونه. |

**مؤلف د ورځنی درس لپاره په پلان جوړولوکې د بیلګیزو (الګو) روشونو او فنونو څخه کار اخلي.**

اړینه او مهمترینه برخه د تدریس کولو په مدیریت کې دیو لیکلي درسي پلان لرل دي، چې ورځنی درسي چارې پرې په منظم ډول ترسره کیږي. ورځنی درس هغه برنامه وي، چې د ښوونکي سره مخکې له تدریس څخه ترتیب او جوړه شوې وي او د ټاکلي وخت لپاره د هغې برنامې سره سم خپل تدریس عیار وي. د ښوونکي سره باید د لاندې لاملونو له کبله یو درسي برنامه شتون ولري:

- د ورځني درس طرح ددې لامل کیږي، چې ښوونکی اړین زده کړیز فعالیتونه یو په بل پسې په منظم ډول ترسره کړای شي، پرته له دې چې وخت وښندل شي. په ټاکلي وخت او زمان کې پړاوپه پړاو په منطقي توګه خپل درسي فعالیت پرمخ بیایي او لاسته راغلې نتیجې په راتلونکو درسي فعالیتونوکې د زده کړې لپاره کاروي.
- نوي او تازه کاره ښوونکي نه شي کولای د تدریس په بهیرکې، ذکر شوي پړاوونه د ټولو جزئیاتو سره خپل ذهن ته وسپاري. دیو درس د طرحې درلودل دغه ستونزه بیاله منځه وړي:

هغه ښوونکي چې پرته له مخکني چمتوالي او یوې درسي برنامې او پلان څخه ټولګي او درس ته ورځي ممکن له ناکامۍ سره مخامخ شي.

- څرنګه چې دیو درس طرح د اصولو او معیارونو له مخې برابریږي، نو ښوونکی باید د درس بنسټیزو عواملو او د درس طرح د ښوونکي پاملرنه د مناسبو روشونو، فنونو، نمونوته د مختلفو درسونو د تدریس لپاره راوړي.
- د درس د برابرولو په بهیرکې ښوونکي کولای شي هغه احتمالي ستونزې د مخه درک کړي، چې دی ورسره په ټولګي یا صنف کې مخامخ کیږي.

- د درسي طرحې شتون کولای شي، چې د درس ارزښتونه څرګنداو د لارښودونکو د لارښوونې ستونزې را کمې او په آسانه توګه لارښوونې ترسره کړای شي.

## د مهال له مخې درسي پلانونه

**د اوږدې مودې درسي پلان:**

هر درسي پلان د لاندې موادو او برخولرونکی وي:

د موخو ټاکنه: هرښوونکی د تعلیمي کال لپاره د اوږدې مودې درسي پلان د اهدافو په ټاکلو سره پیل کوي.دا هغه موخې دي، چې یو ښوونکی غواړي د یوه کال او یا په یوه سمسترکې دا موخې ترلاسه کړي.

اهداف مختلف ډولونه لري، چې دهغو موخو اړتیا دمخه د ښوونکي له خوا مشخص کیږي.

مګرمهمه دا ده، چې ښوونکی باید د لنډې مودې د درسي پلان موخې د منځنۍ مودې د درسي پلان، او هم د اوږدې مودې د درسي پلان ترمنځ اړیکې ټینګې کړي.

د دې مقصد لپاره چې د لنډې مودې د درسي پلان موخې د منځنۍ دورې د درسي پلان هدفونه بشپړ کړي. همدا ډول به د منځنۍ دورې د درسي پلان هدفونه د اوږدې مودې د درس پلان د هدفونو بشپړتیا ترسره کړي.

ښوونکی په خپل درسي پلان کې له هغو کلیمو څخه کار اخلي، چې د زده کوونکو په سلوک کې بدلون رامنځته کوي. د هغو هدفونو څخه لست جوړوی چې غواړي د اوږدې مودې په درسي پلان کې یې ترلاسه کړي. دې ته دې هم پام وکړي او ارزیابي دې وکړي چې هغو هدفونو ته چې لست کړي یې دي، وررسیدلی شي اوکنه؟ همدا شان دې ښوونکي تل د خیالي اهدافوله ټاکلو څخه ځان وساتي.

ښوونکی وروسته د موخوله ټاکلو څخه بیا تعلیمي وسایل انتخابوي، د مضمون محتوا، په مضمون پورې اړوند د زده کړې فعالیتونه، د درسي موادو لوازم د درس ورکولو وسایل او اصول او داسې نور ښوونیز وسایل دي.

مضمون: ښوونکی چې کومه موضوع زده کوونکو ته تدریس کوي، دا موضوع (مضمون) دی. یا په بل عبارت هر څیز (شی) چې د ښوونکي له خوا زده کوونکوته ور زده کول کیږي هغه (مضمون) دی. د مضمون په منځپانګې پورې اړوند رښتیني معلومات، هنرونه، عادتونه او مهارتونه پکې شامل وي.

د مضمون غوره کول د (منځپانګې) له مخې په تعلیمي پلان جوړونه کې بنسټیز عامل ګڼل کیږي.

ښوونکی نه یوازې دا باید په پام کې ولري، چې هر مضمون (ساینس، ریاضی، تاریخ، جغرافیا) او نور د محتوا او پراختیا له مخې څومره پکې سهیم دي، بلکې دا هم په نظر کې باید ولري، چې څه ښوونیز هدف لري؟ آیا زده کوونکي ددې مضمون زده کولو ته چمتو دي؟ مضمون ته اړتیا لري، مینه یې ورسره شته که نه؟!

ښوونکی دې د مضمون په غوره کولو کې دا معیارونه په پام کې ولري:

آیا زده کوونکي د مضمون زده کولو ته لیواله دي؟ زده کوونکي دې مضمون ته اړتیا لري؟

آیا مضمون زده کوونکو ته دومره معلومات ورکولای شي چې اوسنۍ وضع درک کړي، او د یوه وطن پالونکي په توګه خپل مسؤلیتونه سرته ورسوي. زده کوونکي ددې مضمون سره مینه او علاقه لري؟

ښوونکي د خپل مضمون لپاره غواړي په یوه سمستر او یا یوه تعلیمي کال کې درس ورکړي، یو ازمایښتي فهرست جوړوي، عنوانونه - د چارتونو مختلف ډولونه، مفاهیم او اساسات، کړنې، ذهنیتونه، عادتونه، اصلاحات، او هغه حقایق او واقیعتونه چې د هغوی په باب فکر کوي، په دې فهرست کې رانغاړي.

وروسته بیا خپل مضمون په څپرکو یا فصلونو او یا درسي واحدونو باندې ویشي. څپرکي داسې ترتیبوي چې له دوو څخه نیولی تر شپږو اوونیو پورې تدریس کړای شي.

مطلب دا چې ښوونکی سمه او سنجول شوې پریکړه کوي، چې په هر درسي واحد باندې څومره وخت مصرفوي. په دې هکله ټولې هغه ستونزې چې د موادو په برابرول او زده کوونکو د چمتوالي او پوهې له مخې رامنځته کیږي. ښوونکی په پام کې نیسي. ښايي ښوونکي ووايي، چې د تعلیمي نصاب لارښود او یا د ادارې دستور ټول شیان ټاکلي او معلوم کړي دي، مګر د ښوونکي خپله پریکړه ډیره مهمه ده، بله مهمه خبره داده، چې د مضمون او د هغه د درسي پلان په ترتیبولو کې د مضمون ښوونکی د موسسې (مکتب) له امر، سرښوونکي، مدیر او یا نورو هم مسلکانو څخه سلا، مشورې اخلي.

## درسي فعالیتونه:

درسي فعالیتونه د زده کړې ټولې هغه تجربې دي، چې په مستقیم ډول د ښوونکي له خوا برابریږي. په دې برخه کې عملي او نظري فعالیتونه ترسره کیدای شي.

ځنې بیا د مختلفو ډولونو د فعالیتونو څخه کار اخلي لکه: علمي سفرونه، په کمېټو او ننداړو کې برخه اخیستنه هم پکې شامل وي. ځنی د زده کړې فعالیتونه د پروژې په بڼه وي، ټولې هڅې او کوښښونه چې ترسره کیږي، زده کوونکي پکې ښکارنده (فعاله) ونډه لري او د هغو له خوا فعالیتونه ترسره کیږي لکه: د کتاب لوستل د موډل جوړول، د ټوکې (فکاهی) برابرول یا د یوه رپوټ لیکل ټول د پروژی ډولونه دي.

زده کوونکو ته دنده ورکول کیږي چې دا پروژې په ګروپي او یا په انفرادي ډول اجراکړي.

د فعالیتونو څخه یو ازمایښتي لست جوړوي، چې د اوږدې مودې درسي پلان د یوه جز په توګه ورسره مرسته کوي، ترڅو چې ښوونکی موخو (هدفونو) ته ورسوي.

*د ساري په توګه:* د ادبیاتو یو ښوونکی د خوشحال بابا په تاریخي، سیاسي او ادبي شخصیت باندې خبرې کوي، نو پکار ده، چې د خپلو زده کړیزو فعالیتونو په لست کې د نوموړي شخصیت یو انځور او که ممکن وي د خوشحال بابا مزار ته تګ په خپل لست کې ځای کړي.

ددې فعالیت په ترسره کولو سره به زده کوونکي لا وهڅول شي او د ادب سره به یې مینه لازیاته شي.

په دې ډول به ښوونکي د ډول ډول تجربو څخه ګټه اخلي او خپل اوونیز فعالیت ټاکي، چې د زده کوونکو د خوښۍ او ذوق سره سمون ولري.

## درسي توکي (مواد) وسایل او لوازم:

ښوونکي هڅه کوي، چې د هغو درسي موادو او وسایلو څخه لست جوړ کړي، چې دی هدف ته رسوي. لکه درسي توکي، کتابونه، روزنیز فلمونه، مجلې، ورځپاڼې، چارتونه، توره تخته یا سپینه تخته، تباشیر، مارکر، پروجکتور، ټایپ ریکارډر، او نور لوازم لکه: جمنازیوم، ادیتوریم، تربیتي تلویزون، سټډیو او نور اړین توکي او وسایل یادولی شو. ښوونکي د درسي موادو لست د دیپارتمنت امر، د کتابخانې مدیر، د سمعي او بصري څانګې آمر او د ښوونځی د مدیر یا آمر په مشوره جوړوي. دا ځکه چې ښوونکی پوه شي، چې په عملي توګه کوم مواد او وسایل ورته برابریدلی شي او کوم توکي ورته نه شي چمتو کیدلی؟

دا کار چې هر خومره ژرکیدونکي وي او یا ژر ترسره شي د ښوونکي په ګټه به وي.

## د ارزیابي کولو لارې چارې:

د هدوفونو لپاره چې کوم فعالیتونه او اجرات ترسره کیږي، د هغو زیاته برخه وخت پر وخت تر څارنې او ارزیابۍ لاندې نیول کیږي، چې وکتل شي، چې ښوونکي تر کومې کچې خپلو هدفونو ته رسیدلی او یا ورنژدې دي، ځکه ښوونکي مجبور دی، چې لومړی د اوږدې مودې د درسي پلان هدفونه وټاکي او بیا دې هغه واقعي، رښتني او حتیٰ ځانګړي خیالی میتودونه او اصول په ګوته کړي، چې هدفونو ته د رسیدو په خاطر یي ټاکلي دي.

ښوونکی د ارزیابي کولو په خاطر د زده کوونکو پروګرامونه او فعالیتونه ګوري. ازموینه اخلي، د زده کوونکو سره کنفرانسونه دایروي. زده کوونکي هڅوي چې رپوټونه جوړ کړي. زده کوونکو ته وظیفه ورکوي، چې د تدریس شوې موضوع لنډیز ولیکي. یا په دې ډول نورې لارې چارې شته، چې د هغو په واسطه زده کوونکي ارزیابي کړي او دا معلومه کړي، چې چارې سمې پر مخ ځي او که څنګه!؟

## د موخو (هدفونو) ټاکل:

ښوونکی د اوږدې مودې درسي پلان د هدفونو څخه د لارښود په توګه کار اخلي نو ځکه د هغوی له مخې د هر څپرکي هدفونه ټاکي.

ښوونکی د منځنۍ مودې د درسې پلان هدفونه چې دی یې غواړي په هماغه موده کې چې ورته ټاکلې یي ده هدفونو ته رسیدلی دی او که نه؟

مضمون: ښوونکی یو ډول فهرست برابروي، چې په هغو کې معمولاً هغه مفاهیم، حقایق، اساسات، ګړنې (اصطلاحات)، مهارتونه، ذهنیتونه، عادتونه او هغه ځانګړي (مخصوص) کړنې (عملیات) درج کیږي، چې ښوونکي غواړي په دې څپرکی کې درس ورکړي. د ځانګړو څیزونو، له نوې ګړنې، نېټه (تاریخ)،

نومونه او داسې نورو څخه لست جوړوي. ښوونکی د اوږدې مودې په درسي پلان کی ټاکي، چې د خپل مضمون فصلونه یا څپرکي د منظم او مرتب تسلسل له مخې تدریس کړي. په دې مانا چې ښوونکي ته دا څرګنده وي چې کوم څپرکی لومړی، کوم دویم او کوم څپرکې دریم ... تدریس کړي.
او دا معلومه وي، چې دا څپرکي په کوم مهال (وخت) تدریس کوي. دا هم ورته څرګنده وي چې د مهارتونو، سرلیکونو (عنوانونو) د تدریس لپاره څومره وخت ځانګړی شوی دی.

**درسي فعالیتونه:** یو څپرکی په بري سره تدریس کول په هغو هڅو او د فعالیتونو په ډول پورې اړه لري، چې د ښوونکي له خوا ترتیب شوی او همدارنګه په دې پورې اړوندیږ چې دا فعالیتونه په څه ډول ترسره کیږي. له دې کبله هر څپرکی درې ډوله فعالیتونه غواړي:

۱. هغه هڅې او فعالیتونه چې د سریزې (مقدمی) په بڼه وي.
۲. هغه فعالیتونه چې پراختیا ورکول کیږي.
۳. د فعالیتونو څخه نتیجه اخیستل.

مقدماتي فعالیتونه ځکه اړین دي، چې د هغو په وسیلې سره د زده کوونکو اړتیا، علاقه، تشخیص کیږي او هغوی هڅول (پارول) کیدای شي.
هغه فعالیتونه چې د پراختیا په حالت کې وي، زده کوونکو ته دا فرصت ورکوي او دیته یي چمتو کوي، چې هغه مهارتونه تمرین کړي، چې د دوی لپاره ګټور وي او ښه نتیجه ترې واخلي.
د فعالیتونو څخه نتیجه اخیستل زده کوونکو ته دا ځواکمني ورکوي، چې څه شی یي چې لوستلې او ویلې دي سره ټول را یو ځای او لنډ کړي. په ځانګړې ډول زده کوونکي دیته چمتو کوي چې وروستي مهارتونه څنګه ارزیابي کړي.

## په ټولګي کې د فعالیتونو د اجراء کولو اساسي لارې:

ښوونکی په ټولګي کې خپلو زده کوونکو ته د فعالیتونو د اجرا کولو لپاره چې هر ډول لارښوونه وکړي (که په انفرادي ډول وي، او که په ګروپي) د زیات اهمیت وړ ده. خو دا باید په یاد ولرو چې د دې د ترسره کولو لپاره دوې لارې شته. یو ډول هغه اجرات دي، چې د امر او هدایت له لارې سرته رسیږي. او بل هغه ډول اجرات دي، چې د سلا مشورې له لارې وي او یوازې مشوره ورکول کیږي.

په هغو اجراآتو کې چې د امر له لارې ترسره کیږي، ښوونکی خپلو زده کوونکو ته هدایت ورکوي، امر ورته کوي، چې کار او فعالیت په دې ډول اجرا کړئ، داسې وکړئ او یا داسې مه کړئ.

په دې بل ډول کې ښوونکي یوازې د مشورې ورکولو ترڅنګ لومړی د موضوع په اړه معلومات ورکوي او ورپسې زده کوونکي خپل کار پیلوي، چې ښوونکی په دې صورت کې د یو سلا کار حیثیت لري. دا بیل بیل اجراات په خاصو ځایونو کې د اهمیت وړ دي، خو هیڅکله داسې نه شي کیدای، چې د اجراآتو د دواړو ډولونو څخه په ټولو ځایونو کې په مساوي توګه استفاده وشي.

د ساري په توګه: ښوونکی زده کوونکو ته د ګنډلو او سکڼلو لارې چارې ښیي، چې دغه ښودنه به یو امري بڼه ولري. مګر که چیرې د یو ځانګړي موضوع په اړه لکه (د یو سړک یا پله) جوړونه وي، نو بیا په دې برخه کې د ګڼو خلکو څخه معلومات او مشورې باید ترلاسه کړای شي. چې دغه طرز العمل بیا د مشورې په ډول وي.

لاندې ځنې فعالیتونه دي، چې له هغو څخه په انفرادي یا ګروپي ډول په زده کړه کې ګټه اخیستل کیږي.

له دې فعالیتونو څخه د منځنۍ مودې درسي پلان د هدفونو د ترلاسه کولو په موخه په ټولګي کې د یوې فعالې او په زړه پورې طریقې په توګه کار اخیستل

کيږي. ټوکې ټکالی (فکاهيات) له هغو څخه يو ځای استفاده کول، معماري، متقاطع جدولونه چې زده کوونکي ډېر فکر کولو ته هڅوي، راز راز لوبې چې درسي مطلوب رقابت زياتوي، غيرې مرتبې کلمې چې بايد مرتب شکل ورکړل شي. جوړه يي کارتونه، گردی ميز جوړول څو تنه زده کوونکي د ټولگي په وړاندې په گروپي ډول معلومات وړاندې کوي. (مناظره او مباحثه کول، ذهني مسابقې، شعر جنگي، د انتقادي او توصيفي مقالو ليکل او داسې نور زده کړيز فعاليتونه ترسره کيږي.

ښوونکی دې د درسي پلان د جوړولو په وخت کې د زده کړې تجربې په احتياط سره غوره کړي.
په مهال ويش کې دې لازم وخت او مناسب ځاي وټاکي. ښوونکی دې تل دا په ياد ولري چې فعاليتونه دې د فعاليتونو په غرض نه اجرا کوي؛ بلکې فعاليتونه دې د زده کړې په موخو ترسره کړي.
*درسي مواد، وسايل او لوازم:* ښوونکی دې د اوږدې مودې درسي پلان د جوړولو په وخت کې ټول هغه درسي مواد، لوازم او وسايل او ټول هغه امکانات چې ترلاسه کيداي شي په ځيرتيا سره وټاکي او ځانته دې معلوم کړي.
بيا هغه مواد، لوازم او وسايل چې ښوونکی د څپرکي يا فصل د تدريس په وخت کې لست کوي، ښوونکی مواد، لوازم او وسايل د جلا جلا طبقو لاندې لست کوي. د ساري په توگه: ټول چاپي مواد چې د اخځونو په توگه کارول کيږي، د يوې طبقې لاندې لست کوي. سمعي او بصري مواد د بلې ډلې لاندې راولي. پاتې نور مواد ممکن د متفرقه ډلې يا طبقې لاندې لست کړای شي.

## د ارزيابي کولو لارې چارې:

ښوونکی په هغه لست کې چې د منځنۍ مودې د درسي پلان اهداف يي ليکلی دي، د خپل برياليتوب او نه کاميابۍ او يا هدف ته د رسيدو، او نه

**رسیدو د معلومولو په مقصد هرومرو ارزيابي کولو لارې چارې هــم ســنجوي او یايې یاداشت کوي. ښوونکی باید تل په یاد ولري چې یوازې د خپرکي په آخر کې ارزيابي نه عملي کيږي، بلکې د فصل د درس ورکولو په لړ کې دې هم پــه حتمی توګه هره ورځ وګوري چې درسي بهير پــه څــه ډول دی، اجــراات پــه مطلوب ډول ترسره کيږي او که بدلون پکې راوستل شي یــا بــدلون راوســتل غواړي.**

***د درسي ميتود تاکل:*** **ښوونکی هرومرو د هر فصل او خپرکي لپاره د هغو درسي ميتودونو څخه فهرست جوړوي، چې دی غواړي له هغې څخه د تدريس په مهال کې استفاده وکړي. هرخپرکي او موضوع لپاره یو مناسب ميتود په ګوته کوي چې البته هماغه ميتود به د اړوندې موضوع او مضمون د تدريس لپاره اغیزمن او ګټور وي.**

**ميتودونه ډير ډولونه لري او علماوو په مختلفو ډولونو سره ويشلي دي د** Brenice,L, **د ليکنې** Smaslis **پر اساس ميتودونه لاندې بنې لري:**

1. **شفاهي ميتود: اساس او بنسټ یي لکچر جوړوي. هدف درلودل- د موضوع پراختيا- د معلوماتو یو ځای کول. د کارونې ځایونه.**
2. **مهارتي ميتود: د مهارتونو څخه کار اخيستل.**
3. **اکتشافی ميتود: دا ميتود د زده کړې مناسب حالت او چاپيريال شرایط برابر وي. ددې پواسطه مفکورې او مفاهيم معلوميږي، چې زده کوونکي ورته اړتيا لري. په احتياط سره ښوونکی پلان ګذاری کوي. چې دا برخی لري: طرح شوی پلان- د موضوع څيړنه- د کارونې ځایونه- د معلوماتو ليږدول.**
4. **انکشافي ميتود: موضوع ته پراختيا ورکول او معلومات بشپړول.**

**ځينو بیا په لاندې ډول ښودلي دي، چې البته ډير اړين ګڼل شوي دي:**

1. **د شفاهي تدريس ميتودونه:**

۲. د عيني تدريس ميتودونه:

۳. د علمي تدريس ميتودونه:

پورتني ډولونه هر يو بيا جلا اقسام او د پلې کيدلو اړخونه لري، چې دمخه يې ذکر شوی دی.

همدا ډول د (کليات روش تدريس) په کتاب کې د تدريس ميتودونه په لاندې توګه ذکر شوي دي:

۱. شفاهي ميتود:

۲. پوښتنيز ميتود:

۳. د بحث او بيان ميتود:

۴. د بررسي او ارزيابي کولو ميتود:

په يو درسي پلان کې بايد مناسب او وړ ميتود په ګوته شي، چې د تدريس چارې پرې سمې سمبال کړل شي.

درسي ميتودونه د مخه هم په خپل ځای کې تشريح شوي دي، دلته هم يو ځغلند نظر پرې اچول شوی دي، چې لوستونکي، ښوونکي ورته يو ځل بيا پاملرنه او د موضوعاتو سره په عملي توګه ارتباط ورکړای شي.

## د منځنۍ مودې د درسي پلان بېلګه:

(د يو درسي واحد- څپرکي د تدريس لپاره د پلان جوړول)

که څه هم چې يو ښوونکی په دې پوهيږي، چې هر درسي پلان د موخو، فعاليتونو، موادو، او ارزيابۍ له عناصرو څخه جوړ شوي، خو ممکن د اړيکو او تسلسل له مخې ددغو توکو په تنظيمولو کې ستونزې ولري. د يوه درسي واحد پلان جوړښت ممکن په دوو ډولونو د اوټلاين د (فهرست بنه) او يا د يوه لست په شکل جوړ شي.

پاملرنه وکړئ يو بيلګې ته:

درسي واحد (لنډه کیسه) (دريم څپرکی)

ښوونکی: ................ مضمون: پښتو ادبيات

ښوونځی: ................ نيټه: ــ ــ ــ۱۳۹ــ ــ

ــ ۱۳۹ پورې

د ښوونکي يادونه: لنډه کيسه يوه خيالي ژبنۍ هنري اثر دی، چې يوه ټاکلي موضوع لري.

د خپل جوړښت له مخې پيښې پکې په ډراماتيک ډول رامنځته کيږي. هره لنډه کيسه په يوه ټولنيزه پيښې راڅرخي.

د چاپيريال، زمان او وخت سره سم په هغه کې د يوه يا دوه يا زياتو اتلانو او يوې بنسټيزې منځپانگې (محتوا) څرگندونه کيږي. ددې واحد په پرمختيا سره به موږ ځنې لنډې کيسې هم چې نامتو ليکوالانو به ليکلي وي، ولولو، زيار وباسو، چې د دوي هغه ځانگړنې او عناصر او پيښې تحليل کړو، چې له دوی څخه لنډې کيسی جوړوي. هم به زيار وباسو، چې له خپله ځانه لنډې کيسې وليکو. د نوموړي فصل يا درسي واحد د تدريس په وخت کې بايد په دې هڅه کې واوسو. چې يو داسې معيار ته ورسيږو، چې د هغه په واسطه د هرې لنډې کيسې ارزښت او اغيزمنتيا ارزيابي کيدای شي.

## هدفونه:

*الف:* عمومي موخې:

۱. د يوی ادبي گړنې (اصطلاح) او يوې ادبي نوعې په توگه د لنډې کيسې پيژن ته وده ورکول.

۲. د ښو ليکل شوو لنډو کيسو ستاينې ته وده ورکول.

۳. د ښې لنډې کيسې د ليکلو لپاره د تخنيکونو پوهيدنې ته وده ورکول.

*ب:* ځانگړي (خاص) هدفونه:

۱. د لنډې کيسې په اړوندو ګړنو (اصطلاحاتو)، موضوع، اتل، پيښو، وخت، چاپيريال او طرحې باندې د پوهيدلو هڅې.
۲. د بينوا (خاندان خولې) د اثر د سبک او پيغام ستايلو، تقديرولو او نمانځلو ته وده ورکول.
۳. د پروګراف په کيسه ايز سبک باندې ښه پوهيدلو ته وده ورکول.
۴. د الفت د دوو جنازو د سبک او مانا تقديرولو او تفسيرولو ته وده ورکول.
۵. د امکان تر کچې پورې د نکلونو د ليکلو په لور د شخصي هيلو او ارزوګانو هڅول.
۶. د توافق او هدف لپاره د کيسو د عاقلانه او پرځای نيوه کو (انتقاد) ته ګړنديتوب وربښل.
۷. په کيسه کې د هدف د پوهيدنې لپاره هڅونې.
۸. د (بې ګناه بندي) په اثر باندې د هدف د ارزښت څرګندول.
۹. د (زيارت ډيوې) په اثر باندې د څيړنې د تقديرولو او نمانځلو ګړنديتوب.
۱۰. د لنډې کيسې د تعبيرولو او ارزيابي لپاره معيار ته وده ورکول.
۱۱. د کيسو يا نکلونو په ويلو او همدا ډول په بنسټيز اثر باندې د ارزيابي کوونکي معيار په کار اچول.

## درسي فعاليتونه:

*الف:* د (خاندان خولې) څېړل چې په موضوع او اتل پــورې د اړونــدو پوښـــتنو پوهيدنه له ځان سره ولري.

*ب:* په دې برخه کې د يوه پراګراف ليکل، چې که ځوان په پوهې او زده کړې پسې تللی وايي نو څه به پيښ شوی وای.

*ج:* (دوه جنازې) ولولئ.

۱. زمونږ په ځوانانو باندې د موضوع د تطبيقولو قابليت درلودل.

۲. د یوې ادبي اصطلاح په توګه (مبالغه) وښیړئ او په کیسه کې د هغې مثالونه پیدا کړئ.

۳. په کیسه کې د اتلانو، د طبیعت یا ځرنګوالي او پیښو د ډولونو د څیړلو قابلیت درلودل.

*د:* په کیسه ایزه لیکنه کې د هدف او توافق لپاره (د اوسني لیکوال) د (ډاکتر صاحب) کیسه له (۷۷۴) مخ څخه ولولئ او ویې څیړئ.

*هـ:* د خپل ځايي تجربې او چاپیریال پر بنسټ یوه لنډه کیسه پخپله ولیکئ.

*و:* د بې ګناه بندي کیسه بیا ولولئ! د هدف او ځانګړنو له مخې کیسه وڅیړئ او یا له شخصي ځاني تجربو سره اړیکې ورکړئ.

*ز:* د کیسه ایزو لیکنو ځنې ټاکل شوې بیلګې په لوړ اواز ولولئ او د هدف اغیزمنتیا په شفاهي توګه انتقاد او برسي کړئ.

*ح:* د یوه سړي د ژوند په اړه یو څه ولیکی- زده کوونکو ته یې په ټولګي کې ولولئ، د هغې د ځانګړنو او اغیزمنتیا په برخه کې د خپلو ټولګیوالو او زده کوونکو نیوه کې ترلاسه کړئ.

*ط:* د زده کوونکو د کورني ژوند لپاره د موضوع د اغیزمنتوب خصوصیت او اهمیت له مخې د (زیارت ډیوې) کیسه ولولئ او بحث پرې وکړئ.

*ی:* د یوې لنډې کیسې د لیکلو لپاره اصول- لومړی په شفاهي او بیا یې اوټلاین یا طرحه په تخته ولیکئ.

*ک:* یوه اساسي لنډه کیسه ولیکئ.

*ل:* د لنډې کیسې د تعبیرولو- ارزیابي کولو د اصولو د لنډیز د فلم سکریپټ وښیئ او د زده کوونکو څخه وغواړئ چې په هغو کیسو باندې یې تطبیق کړې چې دوی خپله لیکلي او لوستلي دي.

## درسي توکي (مواد):

*الف:* د پیښو او تقدیرولو کیسې (پورتنی لیکل شوې کیسې).

*ب:* پښتو ژبې گرامر او انشاء.

*ج:* د (بی گناه بندي) جلا ليکل شوې پاڼې.

*د:* د لنډې کيسې د تعبيرولو او ارزيابۍ د فلم سکريپټ ريکاټ.

هــ: د زيارت ډيوې نمانځل شوې کيسه: د الفت اثر.... له اوسني ليکوال څخه.

*و:* د زده کوونکو اساسي اثر.

## ارزيابي:

*الف:* په صنفي بحثونو کې گډون کول.

*ب:* ليکلی کار سر ته رسول.

*ج:* د زده کوونکو تر منځ سوال او ځواب ترسره کيږي.

*اخځونه:* دگل پاچا الفت (غوره نثرونه) يا اوسني ليکوال- لومړې- دويم او دريم ټوکونه.

*يادونه:* کيدای شي دغه، اوږدې مودې او منځنۍ مودې او يا لنډې مودې درسي پلانونه د جدول په بڼه په لنډه توگه وړاندې شي. د ساري په توگه پاملرنه وکړئ دې لاندې جدول ته چې د يو کلن درسي پلان بڼه راښيي.

# د کلني درس طرح

| درس: | | | واحد: | تحصیلي کال: | عمومي موخې (هدف): | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| میاشتې | اوونۍ یا (هفتې) | ورځ او ناستې نېټه | څپرکي یا (فصلونه) | د درس موضوع او سرلیک (عنوان) | د درسي ځانګړې موخې (هدفونه) | نور فعالیتونه |
| وری (حمل) | لومړۍ اوونۍ | لومړۍ ناسته (جلسه) | | | | |
| | | دویمه ناسته | | | | |
| | دویمه اوونۍ | دریمه ناسته | | | | |
| | | څلورمه ناسته | | | | |
| | دریمه اوونۍ | پنځمه ناسته | | | | |
| | | شپږمه ناسته | | | | |
| | څلورمه اوونۍ | اوومه ناسته | | | | |
| | | اتمه ناسته | | | | |
| ثور | پنځمه اوونۍ | نهمه ناسته | | | | |
| | | لسمه ناسته | | | | |
| | شپږمه اوونۍ | یولسمه ناسته | | | | |
| | | دولسمه ناسته | | | | |
| | اوومه اونۍ | دیارلسمه ناسته | | | | |
| | | څوارلسمه ناسته | | | | |
| | اتمه اوونۍ | پنځلسمه اوونۍ | | | | |
| | | شپاړسمه اوونۍ | | | | |
| جوزا | نهمه اوونۍ | اوولسمه اوونۍ | | | | |
| | | اتلسمه اوونۍ | | | | |
| | لسمه اوونۍ | نولسمه اوونۍ | | | | |
| | | شلمه اوونۍ | | | | |
| | یولسمه اوونۍ | یوویشتمه اوونۍ | | | | |

| | | دوه ويشتمه اوونۍ | | | | |
|---|---|---|---|---|---|---|
| | دولسمه اوونۍ | درويشتمه اوونۍ | | | | |
| | | څلورويشتمه اوونۍ | | | | |

کيدای شي پورتنۍ بيلگه د نورې مودې يا زياتې مودې لپاره وغځول شي.

## د لنډې مودې د درسي پلان بېلگه د جدول په بڼه:

ښوونکی: (................) مضمون: (................)

ښوونځی: (................) موضوع: (................)

ټولگی: (................) نيټه: (................)

د زده کړې ډول – فعاليتونه – درسي مواد او درسي توکي:

| وخت | هغه څه چې تدريس کيږي | څه ډول تدريس کيږي د تدريس ډول | مواد | ارزونه |
|---|---|---|---|---|
| | | | | |

یا په دې ډول ورته جدول جوړیږي او اړوندې برخې پکې په ګوته کیږي.

**لازم آدرس: مضمون– موضوع، وخت، ټولګی،...**

| وخت یا مهال | د ښوونکي فعالیتونه | د زده کوونکو فعالیتونه | مواد |
|---|---|---|---|
| مثلاً ۳ دقیقې | په عمومي ډول د ټولګي کنترول او د حاضري کتنه. | زده کوونکي ځواب وایي د ښوونکي د پوښتنو په وړاندې مناسب عکس العمل ښکاره کوي. | د حاضري کتاب اخبار– راديويي ورځنی معلومات او نور. |
| ۵ دقیقې | د تیر درس سره تماس او د اوسني درس سریزه له موضوع سره په اړیکه کې ځرګندوي. | د نورو پیښو په باره کې معلومات وړاندی کوي. د تیرو موضوعاتو په اړه هم معلومات ځرګندوي. | کتاب مجلې، ورځپاڼې، راديو، تلويزون، او نورو خپرونو څخه معلومات. |
| ۲۰ دقیقې | اصلي موضوع په ځیرتیا سره په منظم ډول تشریح کوي. | زده کوونکي په غور سره غوږ نیسي، په مصاحبه کې ګډون کوي، د اړتیا سره سمه پوښتنه کوي. | د موضوع په اړوند ریفرنس ورکوي. یا يي په عیني توګه وړاندې کوي. |
| ۱۰ دقیقې | د ويل شوی موضوع په اړه ښوونکی سوال او ځواب کوي. | په دغه بحث کې زده کوونکي پرته له استثنا ګډون کوي. | له سمعي او بصري وسايلو څخه لازمه ګټه اخلی. په شفاهي توګه هم ځرګندونې کیدلا شي. |
| ۷ دقیقې | د موضوع لنډيز جوړول | ټول شاګردان د موضوع د لنډيز په جوړولو کې ونډه اخلي.<br>کورنی دنده ورته سپاري | درسي کتاب او نور ممد درسي مواد. |

پورتنی جدول او پلان د بېلګې په توګه وړاندې شو، کیدای شي، چې د اړتیا سره سمه بله بڼه او اغیزمنه بېلګه چې تر دې هم لا بشپړه وي، چې د ښوونکو سره اغیزمنه مرسته وکړلی شي، ورته وړاندې کړي.

## د حجم له پلوه د درسي پلان بڼه

# د پنځم څپرکي لنډيز

د مختلفو درسی پروګرامونو او زده کړيزو موخو لپاره د سمعی او بصري توکو اهميت په پام کې اړين دي. په مختلفو مضمونونو کې له دې توکو څخه کار اخيستل کيږي . په ژبه، ادبياتو، تعليمی او تربيتي فلمونو، تلويزوني ننداړو، پروجکتورونو، کمپيوتري او انترنتي برناموکې له دې توکو څخه اغيزمنه ګټه اخستل کيږي.

د هري موضوع  د تدريس له پاره يو روش يا ميتود د تدريس کولو کفايت نه کوي، لازم دی چې ښوونکی ډول ډول د تدريس کولو روشونه سره ترکيب کړای شی. د چکي پوه (کومينسکی) له نظره، د سمعي او بصری توکو په واسطه بايد ټول حسی غړي په کار واچول شي. په زده کړه کې، اوريدل، ليدل ډيرمهم رول لري. د تدريس د نوعې په پيژندنه کې له ښوونکي سره مرسته کوي.

د سمعي او بصري وسيلو په واسطه زده کړه کې بايد ټاکلی لارښوونې لکه: مختلفی تجربی، فکري عملی روش هڅول، شاګردانو قابليت يا وړتيا، د هر شاګرد په پام کې نيول له ياده ونه ايستل شي.

په زده کړه کې د سمعي او بصري وسيلو مرستې چې په تدريس کی اغيزمني دي، د (اروا پوه) (کوربناح) له نظره هغه اووه مرستندويه توکی (عنصره) هير نه کړای شی.

د حواسو رول په زده کړه او يادونه کې، د ځيرنو له مخی پنځه واړه حواس ځانګړی رول لری.

۷۵ فيصد د سترګو يا بينايي حس، ۱۳ فيصد د سامعی حس او تقريبا (۶۰) فيصد د غوړ نيوني له لارې زده کړی صورت نيسي. د زده کړيز وسايلو ډلبندی کول لازمی دي. په جدول کې د موادو او وسايلو درجه بندی کول اغيزمنتيا

لري. یوادبي اثر د تدریس په مورد کې د پام وړتکی، که شعر وی او که نثر ځانګړي اصول باید په کار واچول شي. د ادبیاتو منځپانګه (ماهیت) ډولونه او د هغو د تدریس روش او د هغو فنونو چې ورڅخه کار اخلي ښوونکي ورباندی و پوهیږی. د ادبي اثر فورم (بڼه) او محتوا پیژندنه اړینه وي. د نثر په برخه کی ځانګړي روشونه او د نظم په برخه کې ځانته کړنیې ترسره کیږی.

د ښوونکي درسي پلانونه او د هغو ګټې درسي پلان: په لغت کې تدبیر، سنجش او هغې هوډمنتیا ته ویل کیږي چې د یوه کار سر ته رسولو په خاطر یي یو شخص ترسره کوي.

پلان ورځنی، ساعت وار، او نیزه، هفته وار، میاشتنی، کلنی درسی پلان جوړیږي.

ښوونکی باید ځانګړی ټکی په یو درسی پلان کې په پام کې ونیسی. د ورځني درس پړاوونه برابرول، ډیر مهم دي. د مهال او وخت له مخی د درسي پلان پړاوونه برابرول او په هغو اصولو عمل کول په تدریس کې کامیابه پایله لري. په ټولګی ګې د فعالیتونو د اجرا کولو اساسي لارې هغه چې تدریس اغیزمن کوي، هغه باید له پلان سره سم ښوونکي په سمه توګه وکاروي.

# د پنځم څپرکي پوښتنې

۱. د ارواپوه (کورنباخ) له نظره کوم توکي (عناصر) د زده کړې په عملیه کې مرستندوي بلل کیږي؟
۲. په زده کړه او یادونه کې حواس څه رول او اغیزې لري؟ څو تنه دې په دې اړه خپل معلومات نورو ته څرګند کړي.
۳. د ذایقې (څکلو) له لارې څو فیصده زده کړه ترسره کیدلی شي؟
۴. د نسبي توپیرونو او اغیزو له مخې درسي مواد په کومو ډولونو ویشل کیږي؟
۵. د یوه ادبي اثر د تدریس په برخه کې د پام وړ ټکي کوم دي؟ هر یو تن دې په وار سره تشریح کړي.
۶. ادبیات څه ډول هنر دی؟ هر یو تن دې په دې اړه خپل نظر څرګند کړي.
۷. ادبیات په ټولنه کې (...) پانګه ګڼل کیږي.
۸. داستاني نثر کوم نثر ته ویل کیږي؟ د څو ډولونو نومونه یې ذکر کړئ؟
۹. په شپږمه ګڼه کې د منځپانګې له پلوه کیسې څه موضوعات، پیښې او مسایل په ګوته کوي؟
۱۰. یو موزون کلام یا شعر باید په څه ډول سره تدریس شي؟ څو شاګردان دې په دې اړه خپل نظر څرګند کړي.
۱۱. د سبکي ځانګړنو په را سپړلو کې د شعر په اړه کومې پوښتنې مطرح کیدای شي؟ یو له بله څخه پوښتنې وکړئ. ښوونکي دې له هر شاګرد سره مرسته وکړي.
۱۲. یو نثري (متن) باید د کومو ټکو په پام کې نیولو سره ښوونکی تشریح او هغې موضوع ته څنګه پراختیا یا وده ورکولای شي؟ څو تنه دې په دې رابطه خبرې وکړي.

**۱۳. پلان په لغت او اصطلاح کې څه ته وايي؟ او کوم ډولونه لري؟**
**۱۴. د ورځني درس د برابرولو پړاونه په ترتيب سره هر يو تن بيان کړئ؟**
**۱۵. هر څپرکی يا درسي برخې (واحد) کوم فعاليتونه ايجابوي؟**
**۱۶. د يو مضمون په ټاکنه کې ښوونکی، اداره، مدير يا امر د مکتب کوم ټکي او اهداف بايد په پام کې ولري؟**
**۱۷. کوم درسي ميتودونه شتون لري، يوازې نومونه يې ذکر کړئ.**
**۱۸. د لنډې کيسې په درسي واحد کې بايد کوم فعاليتونه ترسره شي؟ هر زده کوونکي دي يو فعاليت په ګوته کړی.**
**۱۹. ښوونکی دې په شاګردانو باندې- د کلنۍ مودې، منځنۍ مودې مياشتې او د يوې اوونې درسي پلانونه د کورنۍ دندې په توګه هغو ته ورکړي، بيا دې د وخت په پام کې نيولو سره په وار سره د نورو تر مخ په ټولګي کې د چارت په بڼه کې توضيح او تشريح کړي.**

# اخځلیکونه

۱. الفت، ګل پاچا. ۱۳۳۹ هـ ش کال. لیکوالي املا او انشاء ، دویم چاپ. کابل:پښتو ټولنه. دولتي چاپخونه.
۲. الفت ، ګل پاچا. ۱۳۳۶ هـ ش کال. غوره نثرونه. کابل: پښتو ټولنه. دولتی چاپخونه.
۳. باوری، محمد رسول. ۱۳۶۶ هـ ش کال. د اجتماعی علومو مجله ۲ ګڼه. کابل پوهنتون. د پوهنتون چاپخونه.
۴. بینوا، عبدالروف. ۱۳۸۸ هـ ش کال. اوسنی لیکوال. کندهار، علامه رشاد خپرندویه ټولنه.
۵. ترین، نوراحمد. ۱۳۵۹ هـ ش کال. اساس های اموزش. د تعلیم او تربیې مطبعه.
۶. حبیبی، عبدالحی. ۱۳۵۰ هـ ش کال. تاریخ خط و نوشته های کهن. کابل: انجمن تاریخ ادب افغانستان، اکاډمی.
۷. د افغانستان لپاره د بی بی سی، تعلیمی پروژې.(۲۰۰۶ م) کال. د رادیویي تعلیمی پروګرامونو لپاره، رساله.
۸. د افغانستان له پاره د اساسی تعلیماتو پروګرام ۱۳۸۶ هـ ش کال. د فنی مرستو اداره (GTZ). د معارف وزارت د ښوونکو د روزنې لوی ریاست. کابل: د ښوونې او روزنې مطبعه.
۹. رشاد، عبدالشکور. ۱۳۸۷ هـ ش کال. د پښتو پخوانی الفباء. کندهار، علامه رشاد اکاډمي.
۱۰. رضایي، عابدین. ۱۳۵۰ هـ ش کال. دانستنیهای نوین. پیرامون میتودولوژی، بخش اول، کابل: نشرات اکاډمی تربیه معلم.

۱۱. رښتیا، سید قاسم. ۱۳۴۶ هـ ش کال. افغانستان در قرن نزه. دولتی مطبعه.
۱۲. رڼا، رڼا ګل.۱۳۵۶ هـ ش کال. وړمې مجله، دریمه ګڼه. کابل پوهنتون. د ادبیاتو او بشری علومو پوهنځی، پښتو څانګه.
۱۳. زندي، بهمن. ۱۳۸۲ هـ ش کال. روش تدریس زبان فارسي، چاپ ششم. تهران: چاپ سازمان انتشارات، وزارت فرهنگ و ارشاد اسلامي.
۱۴. زریر، تاج محمد. ۱۳۸۸ هـ ش کال. میتود تدریسی زبان دری. کابل: د ښوونکي د روزنی لوی ریاست. معارف مطبعه.
۱۵. زیور، زرغونه ریښتین. ۱۳۹۲ هـ ش کال. لیک دود پوهنه. کابل پوهنتون، د ژبوو او ادبیاتو پوهنځی، پښتو څانګه.
۱۶. سویډن کمیټه. ۱۳۷۱ هـ ش کال. دویم جلد، د ښوونکو لپاره روزنیز سیمنار. معارف مطبعه.
۱۷. صافی، محمود او محمد آقا شیرزاد. ۱۳۸۶ هـ ش کال. د ژبی د تدریس اصول. د ښوونې او روزنی پوهنتون، پښتو څانګه.
۱۸. غبار، غلام محمد. ۱۳۴۷ هـ ش کال. افغانستان در مسیر تاریخ. طبع اول. کابل: دولتی مطبعه.
۱۹. فردینان، دسوسور. محمد رفیق رفیق ژباړه.۱۳۹۳ هـ ش کال. (ژبه او وینا). کابل مجله ،۲ ګڼه . د افغانستان د علومو اکاډمي، د ژبو او ادبیاتو مرکز.
۲۰. فروتن، خوشبخت. ۱۳۸۵ هـ ش کال. روش های نوین تدریس، چاپ دوم. مطبعه معارف.

۲۱. کاروان، پیر محمد. ۱۳۷۱ هـ ش کال. له ماښــامه تــر ماښــامه. د ازاد افغانستان د لیکوالو ټولنه( وفا). پیښور، چاپ: ټاپ پرنټرز.
۲۲. ګڼ شمیر لیکوال. ۱۳۸۶ هـ ش کال. د ښوونکو لپاره د مطالعې مواد. د پوهنې وزارت. د ښوونکو د روزنې لوی ریاست. معارف مطبعه.
۲۳. ګڼ شمیر لیکوال. ۱۳۸۶ هـ ش کال. د ښوونکو لپاره د مطالعې مواد. د پوهنې وزارت. د ښوونکو د روزنې لوی ریاست. معارف مطبعه.
۲۴. ګڼ شمیر لیکوال. ۱۳۸۶ هـ ش کال. د ښوونکو لپــاره د مطــالعې مــواد. د پوهنې وزارت. د ښوونکو د روزنې لوی ریاست. معارف مطبعه.
۲۵. لطف، محمد الله. ۱۳۵۹ هـ ش کال. اساس های اموزش. کابل: مطبعه تعلیم و تربیه.
۲۶. محمد علی. ۱۱۳۵۴ هـ ش کال. تاریخ اموزش و پــرورش بــاختر. تهــران: چاپخانه، خرمی.
۲۷. مومند، محمد ګل خان. ۱۳۱۷ هـ ش کال. د پښتو ژبې لیاره یا پښتو صرف او نحو، د صافی عبدالعظیم په اهتمام. لاهور چاپ.
۲۸. نیکیار، محمد نادر شاه. ۱۳۸۳ هـ ش کال. د تدریس اصول او میتود. دریم چاپ.کابل پوهنتون. د ښوونې او روزنې پوهنځی، پوهنتون چاپخونه.
۲۹. نیساری، سلیم. ۱۳۴۴ هـ ش کال. کلیات روش تــدریس. ایــران: تهــران، چاپخانه وزارت اطلاعات.
۳۰. هیوادمل، زلمی. ۱۳۹۳ هـ ش کال. د افغانستان د فرهنــګ تــاریخ. کابــل پوهنتون، د ژبوو او ادبیاتو پوهنځی. پښتو څانګه.
۳۱. یمین، محمد حسین. ۱۳۸۴ هـ ش کال. دستور زبان فارسی (دری). کابــل: پوهنځی زبان و ادبیات. دیپارتمنت دری. انتشارات میوند.



# مننه او کور ودانی

د افغانستان ملي تحریک له هېواد پال او فرهنګپال شخصیت ښاغلي (عبدالوکیل وفا ) څخه د زړه له تله مننه کوي چې د دې اثر چاپ ته یې اوږه ورکړه. ملي تحریک ویاړي چې د علمي اثارو د چاپ لړۍ یې پیل کړې ده. دا لړۍ به دوام لري. موږ له ټولو درنو هېوادوالو څخه په خورا درنښت هیله کوو چې په خپل معنوي او مادي وس د کتابونو د چاپ دا لړۍ لا پسې وغځوي.

یو ځل بیا د دې اثر له لیکوال او چاپوونکي څخه د زړه له تله مننه کوو چې د دې اثر د لیکلو او چاپولو جوګه شول.

په فرهنګي مینه

د افغانستان ملي تحریک

